

# د
# رسول الله صلی الله علیه وسلم
# په ژبه دیرش قیصې

استادانو، داعیانو، والدینو، ماشومانو، محصلینو، ځوانانو
او ملګرو د مطالعې لپاره یو په زړه پورې کتاب


لیکوال:
عصام عبدالعزیز الشایع

ژباړه او د احادیثو تخریج
عبد الباري (جمال)
(م م ج)



د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژبه دیرش قیصې
ژباړه او د احادیثو تخریج عبد الباري (جمال) (م م ج)

د رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام په ژبه

# دیرش قیصي

لیکوال : عصام عبدالعزیز الشایع

ژباړه او د احادیثو تخریج : عبد الباري (جمال)

(م م ج)

د کتاب عربي نوم : ثلاثون قصة بلسان محمد صلى الله عليه وسلم

ليکوال : عصام عبدالعزيز الشايع

چاپځاي او نيټه : دار الطرفين للنشر والتوزيع ، الطائف ۱۴۳۰ هجری

**اهداء**

**خپل ارواښاد پلار ته چي د رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام نه وروسته زما لپاره قدوة دی**

**خپلی مور جاني ته چی د الله عزوجل او د هغه د رسول عليه افضل الصلاة والسلام نه وروسته پر ما ډيره ګرانه او مهربانه ده او زما د ژوند اولني استاذه او مدرسه ده .**

**د ليکوال سريزه :**

الحمد لله الذي أرسل لنا أعظم أنبيائه ، و أكرمنا بسنة خير أصفيائه، محمد بن عبدالله أعظم البشر خلقا و أفصحهم لسانا ، و أقواهم ايمانا ، أما بعد :[1]

دا کتاب چې ما ليکلی دی په دی کتاب کی هر حديث د فصاحت نه ډک دی او دا خبره ځکه عجيبه نه ده چې دا ټول احاديث د رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام له مبارکي خولی روايت شوی دی .[2]
د دی کتاب هره قيصه می د صحيحو احاديثو څخه را ټوله کړی ده ، او د هر حديث لاندی می فائدي هم ليکلی تر څو د دغه فائدو څخه لوستونکي ګټه واخلی ، هر ايت می په اعوذ بالله شروع کړی دی ځکه الله عزوجل فرمايلی دی :

( فاذا قرات القران فاستعذ بالله من الشيطن الرجيم ) النحل ٩٨ .

د بعضو سختو کلماتو معناګاني می په قوسونو کی د هماغه کلماتو سره پيوسته ذکر کړی تر څو لوستونکی د قيصی څه لری لاړ نشی ، دغه کار دا ګټه هم لری چې لوستونکي په معنی زر پوهيږی او په اساني بل هم پوهولی شی .[3]

دا کتاب می استاد ته چې په مکتب کی يې شاګردانو ته و وايې ، داعي او ملا ته چې عامو خلکو ته يې ورسوی او فائدي يې بيان کړی او مور او پأار ته چې خپلو ماشومانو ته يی و وايې ليکلی دی .
که چيرته په دی کتاب کی څه پاتی شوی او يا غلط شوی وی نو هغه زما او د شيطان تيروتنه ده .[4]

د الله عزوجل ته دعا ګوی يم چې هر هغه څوک چې دا کتاب لولئ او يا يې نورو ته اوروی د هغوی په عمرونو او مالونو کی برکت واچوی .

ما ( ليکوال ) ، زما مور او پلار ، اولاده او ميرمن له خپلو دعاؤ څخه مه هيروی .

عصام بن عبدالعزيز الشايع

1
2
3
4

**دپیل خبرې :**

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله رب العالمین والصلاة والسلام علی أشرف الأنبیاء والمرسلین سیدنا محمد وعلی آله وصحبه آجمعین ، و بعد :

دا د انسان فطرت دی چی قیصي د بل هر شي نه ډیری په غور او خوند لولئ او اوري ، د خلکو په جذبولو کی که هغه وړوکي وی او که لوی قیصه ډیره زیاته اغیزه لری او همدا لامل دی چی اسلام ربښتینو قیصو ته ډیر اهمیت ورکړی ، الله عزوجل فرمایلی :

(فَٱقۡصُصِ ٱلۡقَصَصَ لَعَلَّهُمۡ يَتَفَكَّرُونَ) . د اعراف سورت ۱۷۶ ایت .
ژباړه : دوی ته دغه قیصی ( او احوال) بیان کړه کیدای شی دوی فکر وکړي ( په دغه قیصو کی او ایمان راوړي ) .
په قران کریم کی ځایې په ځایې د تیرو قومونو احوال او قیصی راغلي دی تر څو مونږ د هغو قیصو څخه پند او عبرت واخلو الله عزوجل فرمایلي :

(كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيۡكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ مَا قَدۡ سَبَقَۚ ) ، د طه سورت ۹۹ ایت .
ژباړه : هم داسی مونږ تاته د هغه امورو چی تیر شوی دی قیصی کوو .

الله عزوجل بل ځاي فرمایلی :

(لَقَدۡ كَانَ فِي قَصَصِهِمۡ عِبۡرَةٞ لِّأُوْلِي ٱلۡأَلۡبَٰبِۗ)، د یوسف سورت ۱۱۱ ایت .

ژباړه : بیشکه د دوي ( یوسف علیه السلام او د هغه د وروڼو یا نورو انبیاؤ او امتونو) په قیصه کی د عقل د خاوندانو ( هوښیارانو ) لپاره پند او عبرت شته دی .

په دی کتاب کی چی کومي قیصی را ټولی شوی دی هغه د ستر لارښود رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام له مبارکي خولی روایت شوی دی چی د هغه په باره کی الله عزوجل فرمایلی دی :

(وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلۡهَوَىٰٓ ٣ إِنۡ هُوَ إِلَّا وَحۡيٞ يُوحَىٰ ٤ )

ژباړه : او (رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام ) له هوا ( له ځانه) خبری نه کوی ، دغه وحیه ده چی ورته لیږل شوی ده .

**ولي دا کتاب :**

دا کتاب می ځکه د ژباړي لپاره خوښ کړ چی :

١ : د مبارک رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام په مبارکه ژبه دیرش قیصی دی .

٢ : دغه قیصی د صحاح ستة ؤ څخه را ټولي شوی .

٣ : په دغه احادیثو ( قیصو ) کي ډیر عبرت او درس پروت دی .

۴ : په دی کی ډیر شرعي احکام ، تربوي ګټي ، فائدي او اسلامي اداب پراته دی .

۵ : د مور او پلار لپاره تر ټولو ښه کتاب دی چی خپلو بچیو ته ترینه قیصی وکړی .

٦ : یو داعي . استاد او ملا ته تر ټولو ښکلی کتاب دی تر څو نورو ته دا قیصی ورسوي او هغوی ته د دغه احادیثو فائدی بیان کړی .

**د احادیثو تخریج :**

الف : محترم لیکوال چی په دی کتاب کی کوم احادیث راوړی دی د هغی په اخر کی به یی داسی لیکلی ول : صحیح بخاري ، یا به یې لیکلی ول : حدیث صحیح ، یا به یی لیکلی ول: اخرجه مسلم او یا هم داسی چی حدیث حسن.

ب : که لیکوال د صحیح بخاري کوم حدیث (قیصه) په خپل کتاب کی ذکر کړي (راوړي) نو که هغه حدیث امام بخاري په خپل کتاب کی تکرار (راوړي) کړي وی  ما هغه د صحیح بخاري د تکرار شوی کتاب او باب  ذکر کړي دی .

د مثال په توگه :

لیکوال د پنځمي قیصي ( حدیث) چی د (په دم سره شفا موندل ) نومیړی په اخره کی یواځي دومره لیکلی : صحیح بخاري .

ما د دغه حدیث ( قیصی ) تخریج داسی کړی :

صحيح البخاري واللفظ له: كتاب الإجارة ، باب ما يعطى فى الرقية على أحياء العرب بفاتحة الكتاب حديث: (۲۲۷۶ ) او همداسی امام بخاري  په کتاب الطب ، باب : الرقى بفاتحة الكتاب، (۵۷۳۶)او په باب : النفث  فى الرقية کې ( ۵۷۳۷)  او همداسې په کتاب :  فضائل القرآن ،  باب :  فضل فاتحة الكتاب (۵۰۰۶) کی هم ذکر کړي .
صحيح مسلم: كتاب السلام، باب جواز أخذ الأجرة على الرقية بالقرآن و الأذكار، حديث: (۲۲۰۱)
سنن الترمذى: أبواب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم، باب ما جاء فى أخذ الأجر على التعويذ، حديث: (۲۰۶۳ )
سنن أبى داود: كتاب الاجارة،  باب فى كسب الأطباء، حديث: (۳۴۱۸)
سنن ابن ماجه: أبواب التجارات، باب أجر الراقى، حديث:( ۲۱۵۶ ) .
.

ج : د حدیث په فائدو کی چی لیکوال کوم احادیث ذکر کړي ول هلته به لیکوال یواځي دمره لیکلی ول چی حدیث صحیح ، هلته می هم کوښښ کړی چی د هر حدیث تخریج وکړم .
د : د بعضو احادیثو په فائدو کی می زیاتوالی راوستی دی او هلته می  د قران کریم ایتونه  او نبوی احادیث هم راوړی دی .
احادیث می د الکتب الستة (صحيح البخاري ، صحيح مسلم ،سنن آبي داود ، جامع الترمذي ، سنن النسائي ، سنن ابن ماجة) چی د صالح بن عبدالعزیز بن محمد بن ابراهیم ال الشیخ د اشراف او مراجعی لاندی دارالسلام ( الریاض ) په ۲۰۰۰ م چاپ کړی دی څخه تخریج کړي دی.

که څه هم د احادیثو تخریج یو ستونزمن کار دی او دغه تخریج زما ډیر وخت ونیوه خو بیا هم د الله عزوجل ډیر شکر اداء کوم چې وتوانیدم د دی کتاب ټول احادیث د صحاح سته نه تخریج کړم ، حدیث مي په صحاح سته کی لیدلی او د کوم کتاب لفظ می چې راوړی د هغه کتاب نوم می هم ورسره ذکر کړي دی ، بیا هم انسان کمزوری دی او کیدای شی د بعضو احادیثو تخریج رانه پاتی او یا غلط شوی وی نو د هغی له مخکی نه ښښنه غواړم ، کیدای شی د احادیثو په ژباړه کی غلط شوی یم او امید کوم چې دغه شوی غلطی راته په گوته کړی تر څو په راتلونکي کی ورته پاملرنه وکړم .

د گران ورور او ملگرې رشتین زابلوال صیب څخه د زړه له تله مننه کوم چې هر وخت یی لیکلو ته هڅولی یم او لار ښوونه یی راته کړی ده .
د خوږ ورور دکتور محمد شفیق عبدالظاهر ډیر مننددوی یم چې احادیث یې له نظره تیر کړل .

د خپلي مور مننددوي یم چې تل یی زما کتابونه ، قلم او کتابچې د ماشومانو او کور نورو غړو څخه په ډیر احتیاط ساتلي دی تر څو زه یی بیا په لټولو ستړي نه شم .

د ام بشائر مننددوی یم چې د احادیثو په تخریج کی یې راسره مرسته کړی .

عبدالباري جمال

۲۰۱۴ میلادیز کال پیښور

**۱: قیصه : د نیک عمل په کولو سره نجات موندل .**

**عن عَبْدَاللَّه بن عَمر رَضيَ اللَّهُ عَنْهما،قَالَ : سَمعْتُ ر سولَ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيه وَسَلَّمَ،يَقُولُ : " انْطَلَقَ ثَلَاثَةُ رَهْط ممَّنْ كَانَ قَبلَكُم ،حتَّى أَووا الْمَبيتَ إلَى غَار فَدَخَلُوهُ ،فَانْحدَرتْ صَخْرةٌ منَ الْجبَلِ فَسدَّتْ عَلَيْهما الْغَار ،فَقَالُوا : إنَّهُ لَا يُنْجيكُمْ منْ هَذه الصَّخْرةً إلَّا أَنْ تَدْعوا اللَّهَ بصَالحِ أَعْمالكُمْ**

،فَقَالَ رجل منْهُمْ : اللهُمَّ كَانَ لي أَبوَان شَيْخَان كَبيران ،و كُنْتَ لَا أَغْبقُ قَبلَهما أَهْلًا ولَا مالًا ،فنأَى بي فيَ طَلَب شَيء يوما ،فلَم أُرِحَ علَيْهِمَا حتَّى نَاما ،فَحلَبتَ لَهمَا غبوقَهما فَوجدْتُهَما نَائمين ،وكَرِهْتُ أَنْ أَغْبقَ قَبلَهماَ أَهْلًا أَوْمالاً ،فَلَبثْتُ والْقَدح علَى يدَيَّ أَنْتظِرُ اسْتيقَاظَهُمَا حتَّى برقَ الْفَجر ،فَاستَيقَظَا فَشرَبا غبوقَهما ، اللهُمَّ إنْ كُنْتَ فَعلْتَ ذَلكَ ابْتغَاء وجْهكَ ،فَفَرِّج عنَّا مانَحن فيه من هَذه الصَّخْرة ،فَانْفَرجتْ شيئا لَايستطيعُونَ الْخَروج ،قَالَ النَّبيُّ صلَى اللهُ علَيه وسلم : وقَالَ الْآخر : اللهُمَّ كَانَتْ لي بنْتُ عمٍّ كَانَتْ أَحبَّ النَّاس إلَيَّ ،فَأَردْتُها عَن نَفْسهَا ،فَامتنعَتْ منِّي حتَّى أَلَمَّتْ بها سنَةٌ من السِّنين ،فَجاءتْني فَأَعْطَيتَها عشْرين ومائَةَ دينار ،علَى أَنْ تُخلِّي بيني وبين نَفْسها ،فَفعلَتْ حتَّى إذَا قَدرَت علَيها ،قَالَتْ : لَا أُحلُّ لَكَ أَنْ تَفُضَّ الْخاتم إلا بحقّه ، فَتحرَّجتْ منَ الْوقُوع علَيها فَانْصرفْتَ عنْها وهي أَحبُّ النَّاس إلَيِّ وتركْتَ الذَهب الذي أَعْطَيْتها ،اللهُمَّ إنْ كُنْتَ فَعلْتَ ابتغاء وجْهكَ فَافْرج عنَّا ما نَحن فيه ،فَانْفَرجت الصَّخْرةُ غير أَنَّهم لَايستطيعُونَ الْخَروج منْها ،قَالَ النَّبيُّ صلَى اللهُ عَلَيْه وسلم : وقَالَ الثَّالثُ : اللهُمَّ إنِّي استأْجرت أُجراء فَأَعْطَيتهم أَجرهمَ غير رجلٍ واحد ترك الذي لَه وَذَهب فَثَمَّرت أَجرهَ حتَّى كَثُرتْ منهُ الْأَموالُ ،فَجاءني بعد حين ،فَقَالَ : ياعبدَاللهَ ، أَدِّ إلَيَّ أَجري ،فَقُلْتَ لَه : كُلُّ ما ترى منْ أَجرِكَ من الإبل ، والْبقَر ،والْغنَم ،والرَّقيق ،فَقَالَ : ياعبدَالله ،لاتستهزئ بي ،فَقُلْتُ : إنِّي لَا أَستهزئ بك فَأَخذَه كُلَّه ،فَاستَاقَه فَلَم يترك منْهُ شيئا ،اللهُمَّ فَإنْ كُنْتَ فَعلْتَ ذَلكَ ابْتغَاء وجهكَ ،فَافْرجَ عنَّا ما نَحن فيه ،فَانْفَرجَت الصَّخْرةُ ،فَخرجوا يمشون)) .

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چې وائي : ما د رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام نه واوريدل چې فرمايل يې :

تر تاسې نه په مخکنيو امتونو کې درې کسان (په لاره) روان وو ،دوی د شپې تېرولو په موخه يوه غار ته راغلل او هلته ننوتل. د غره نه يوه لويه تيږه را ونښوېده اوپه دوی پسې يې د غار خوله بنده کړه دوی وويل: يواځې په دې به وژغورل شئ، چې د خپلو نېکو عملونو په طفيل مو الله تعالی ته دعاء وکړئ ، يو خپله دعاء داسی پيل کړه:

يا الله زما مور او پلار بوډاګان (سپين ږيري) وو، ما به تر دوی وړاندې خپل اهل او مال ته شيدې د ځکلو لپاره نه ورکولې (يعنې هغوی مې دېته نه پرېښودل، چې زما د مور او پلار نه مخکې شيدې وڅکې، بلکې لومړی به مې خپل مور او پلار ته د ځکلو لپاره ورکولې) يوه ورځ د يوه شي په لټه پسې ډېر لرې ولاړم، هغه مهال خپل کور ته راستون شوم، چې دوی دواړه ويده شوي وو، دوی ته مې شيدې را ولوشلې اما دوی ويده وو، دا مې زړه نه منله چې تر دوی وړاندې دې خپل اولاد ته شيدې د ځکلو لپاره ورکړم، پياله په لاس د دوی د راوېښېدلو په انتظار پاتې شوم، تردې چې سهار وځلېد او

دوی را پاڅېدل او خپلې شیدې یې وڅکلې، ای الله! که چېرته ما دغه کار یواځې ستا د رضاء لپاره کړی و، نو په مونږ دغه مصیبت اسانه کړه ، هغه تیږه لږې شوه، خو دوی ترېنه دباندې نه شو وتلی، رسول الله علیه الصلاة والسلام وفرمایل: هغه بل داسې و ویل : یاالله! زما د تره (کاکا) یوه لور وه، چې هغه ماته تر هر چا ډېره گرانه وه، ما دهغې سره د یو والې ( د حرام کار) اراده وکړه، مگر هغې زه منع کړم تر دې چې یو کال قحطي راغله، هغه ماته راغله، ما هغې ته په دې شرط ۱۲۰ دینار ورکړل تر څو د هغې په بدل کې زما سره بد کار وکړي، هغه راضي شوه، او زما پری لاس بر شو مگر هغې راته و ویل: تاته دا نه ده روا چې دا مهر له حقه پرته مات کړې، (ده دې خبرې په اورېدلو) دا راته ډیره بده ښکاره شوه، چې زه دې خپل غرض پوره کړم، نو زه د هغه ځایه لاړم، حال دا چې هغه ماته تر هر څه ډېره گرانه او نزدې وه، هغه څه چې ما هغې ته ورکړي وو هغه مې ورته پرېښودل، یاالله! که ما دا کار ستا د رضاء لپاره کړی وي، نو یاالله په مونږ رحم وکړې او دا تیږه لیرې کړې، هغه تیږه لرې شوه، خو دوی ترینه نه شو وتلي.

رسول الله علیه الصلاة والسلام وفرمایل: دریم داسې وویل:

یاالله ما څو مزدوران کار کولو ته راوستي وو، ما هغه ټولو مزدورانو ته خپله مزدوري ورکړه، خو په دوی کې یو د خپلې مزدورۍ د اخستلو پرته ولاړ، ما د هغه د مزدوري پیسې په کاروبار کې ولگولې، هغې ډېره گټه وکړه، څه وخت پس هغه کس راغئ اوله ما څخه یې خپله مزدوري وغوښتله، ما هغه ته وویل: دا اوښان، غواگانې، پسونه او غلامان چې وینې دا ټول ستا دي، هغه راته وویل: ای د الله بنده خندا را پوری مه کوه، ما هغه ته وویل: رښتیا وایم او ټوقي در سره نه کوم، هغه ټول مال په مخه کړ او هېڅ شی یې هم پرې نه ښودل، یاالله که چېرته دغه کار ما ستا د رضاء لپاره کړی وي، نو زمونږ نه دا مصیبت لرې کړې، هماغه وه چې تیږه لرې شوه او هغوی د هغه غار نه را ووتل او روان شول.

**دحدیث تخریج :**

بخاري : کتاب الاجارة ،باب من استأجر أجیرا فترک أجره فعمل فیه المستأجر فزاد : حدیث: (۲۲۷۲) . او په کتاب البیوع ، باب : اذا اشتری شیئا لغیره بغیر اذنه فرضي ، حدیث : ( ۲۲۱۵ ).

بخاري په أحادیث الأنبیاء،باب حدیث الغار (۳۴۶۵ ) او په کتاب الأدب ، باب : اجابة دعاء من بر والدیه (۵۹۷۴) او په کتاب الحرث والمزارعة ، باب اذا زرع بمال قوم غیر اذنهم (۲۳۳۳) .

مسلم : کتاب،الرقاق :باب : قصة اصحاب الغارالثلاثة،والتوسل بصالح الأعمال،حدیث : ( ۲۷۴۳).

**د حدیث فائدې:**

۱: په خوشحالۍ کې د الله عزوجل یادول ددې سبب ګرځي، چې الله عزوجل به دې په سختیو کې یاد ولري.

۲: په ښه عملونو سره دعا کول لکه د مور اوپلار سره ښه کول د زناء نه ځان ساتل، امانت ساتل، چې څوک محتاج وي د هغوی سره په پټه مرسته کول او داسې نور.

۳: ښه ناسته او ښه ملګرتیا د کامیابۍ او نجات سبب ګرځي .

۴: د مور او پلار عزت، احترام او د هغوی په خدمت کې سختي ګالل تر ټولو ښه او بهتره عمل دی او د هغو سره مینه تر هر څه مخکې دی.

۵: کله چې مور او پلار بوډاګان شي د هغوی حق زیاتیږی او د دې ټولو نه ډیر د هغوی سره ناسته او خبرې اوریدل ضروري دي د هغوی شرعي حاجتونه پوره کول د هر څه نه اول او ضرور دي.

٦: الله داسې هیڅ یو عمل نه قبلوي چې هغه خالص د هغه لپاره نه وي.

۷: د زناء او هر ناوړه عمل نه ځان سانته خیر پیدا کوي.

۸: امانت خپل حقدار ته سپارل او په هغې کې خیانت نه کول د الله د رضاء او خوشحالۍ سبب ګرځي لکه څنګه چې اخرني کس وویل او تیره بیخي لرې شوه او هغوی د غار څخه ووتل.

۹: ولیان او د الله دوستان کرامات لري، خو د الله د دوستانو د کرامت او د شیطان د ملګرو سحر کې فرق واضح دی.

۱۰: د مخکنیو قومونو کیسو کې د عبرت ډیر څه نغښتي دي، چې انسان ته پکار دي د هغوی د ژوند نه عبرت واخلي.

**۲: توبه ویستونکي قاتل:**

**عَن أَبِي سَعِيد الْخُدْرِيِّ رضي الله عنه  أَنَّ نَبِيَّ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّم قَالَ: كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُم رجل قَتَل تَسْعَةً وَتسْعين نَفْسا ، فَسأَلَ عن أَعْلَم أَهْل الأَرض فَدُلَّ عَلَى راهب ، فَأَتَاه فَقَالَ: إِنَّه قَتَل تسْعَةً وَتسْعين نَفْسَا، فَهل لَه من تَوْبَة ؟ فَقَالَ: لا، فَقَتلَه فكَمَّل به مائَةً ، ثُمَّ سأَلَ عن أَعْلَم أَهْل الأَرض ، فَدُلَّ عَلَى رجل عَالم ، فَقَالَ: إِنَّهُ قَتَل مائَةَ نَفْس فَهل لَه من تَوْبَة ؟فَقَالَ: نَعم ومن يحولُ بينه وبين التَّوْبَة, انْطَلقْ إِلَى أَرضِ كَذَا وَكَذَا ؛فَإِنَّ بهَا أُنَاسا يعبدُونَ اللَّه فَاَعْبد اللَّه معهم ولاتَرجعْ**

**إِلَى أَرْضِكَ فَإِنَّهَا أَرضُ سَوْءٍ ، فَانْطَلَقَ حتَّى إِذَا نَصفَ الطَّرِيقَ أَتَاهُ الْموتَ ، فَاخْتَصمتْ فِيه مَلائِكَةُ الرَّحمة وملائِكَةُ الْعَذَاب ، فَقَالَتْ ملائِكَةُ الرَّحْمَة : جاء تَائبا مُقْبلاً بقَلْبه إِلَى الله, وقَالَتْ ملائِكَةُ الْعَذَابَ: إِنَّهُ لَم يعمل خَيرا قَطُّ ، فَأَتَاهم ملَكٌ فِي صُورة آدمِيٍّ فَجعلُوهُ بينهم ، فَقَالَ: قِيسوا مابين الأَرضَين فَإِلَى أَيَّتهما كَانَ أَدْنَى فَهو لَه، فَقَاسوه فَوجَدُوهَ أَدْنَى إِلَى الأَرضِ الَّتي أَرادَ ، فَقَبضَته ملائِكَةُ الرَّحمة.**

دأبوَ سعيدالخدَري رضى الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

له تاسې نه په مخکنيو امتونو کې يو کس وو، چې نهه نوي (۹۹) قتلونه يې کړي وو، هغه د ځمکې په مخ تر ټولو څخه د لوی عالم پوښتنه وکړه، خلکو ورته يو راهب وښوده، هغه راهب ته ورغی او ورته يې وويل: ما نهه نوي مړي کړي دي. آيا زما توبه به قبوله شی که نه؟ راهب ورته وويل: نه! هغه کس راهب هم وواژه او په دې سره يې سل مړي پوره کړل. بيا يې د خلکو څخه په ځمکه تر ټولو د ښه عالم پوښتنه وکړه، خلکو ورته يو بل عالم وښوده، قاتل عالم ته ورغی او ورته يې وويل: ما سل مړي کړي آيا زما توبه به قبوله شی؟! هغه ورته وويل: هو! څوک دی چې ستا او د توبې ترمنځ حائل شي، ته داسې وکړه چې فلاني ځای ته لاړ شه، هلته څه خلک دي چې هغه د الله عزوجل په عبادت بوخت دي ته هم د هغوی سره په عبادت کې مصروفه شه، او خپل ځای ( کلی ) ته مه ځه، ځکه هغه بد ځای دی. هغه کس د هغه ځای په لور روان شو، خو هغه ځای ته د رسېدلو نه مخکې په نيمايي لار کې ورته مرگ راغی ، د عذاب او رحمت فرښتې په خپلو کې په دعوه شوی ، د رحمت فرښتو وويل: هغه توبه ويستلې وه او د الله لور ته يې رجوع کړې وه، د عذاب فرښتو وويل: هغه هېڅ ښه عمل نه دی کړی، تردې چې د انسان په شکل يوه فرښته راغله، نو دواړو ډلو (دنيکې او عذاب فرښتو) په هغه د فيصلې کولو موافقه وکړه، هغه وويل:

د دې دواړو کلو ترمنځ ځمکه اندازه (لويشت) کړئ هغه (سړی) چې کوم کلی ته نزدې وي، نو بيا يې هماغه فرښته روح واخلئ ، کله چې هغوی د ځمکې اندازه واخيستله، نو هغه (سړی) هغی ځمکې ته نزدې و چې د کومی قصد يې کړی و، نو د رحمت فرښتو د هغه روح واخيسته ، قتاده وايي: حسن وايي: ما اوريدلي دي چې هغه کله مړ کېده، نو په سينه وغورځېده. (تر څو هغه کلي ته نزدې شي).

## دحديث تخريج:

بخاري: كتاب: أحاديث الأنبياء، باب: حديث الغار، حديث: (۳۴۷۰)
مسلم واللفظ له: كتاب التوبة، باب: قبول التوبة القاتل، وان كثر قتله، حديث: ( ۲۷۶۶)
ابن ماجة: أبواب الديات، باب: هل لقاتل مؤمن توبة، حديث،( ۲۶۲۲)

**د حديث فائدې:**

۱: كه د بنده گناهونه هر څومره هم ډېر شي الله عزوجل بيا هم ورته د توبې دروازه خلاصه کړې ده. الله عزوجل فرمايلی:

**(قُلْ يَاعِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لاَ تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ) . د زمر سورت ۵۳ ايت .**

ووايه(ای محمده! چې الله عزوجل فرمايلي) ای زما هغه بنده گانو چې په خپلو نفسونو يې اسراف، د الله له رحمته مه نا اميده کېږئ، بېشکه الله ټول گناهونه بښي او بېشکه هغه (الله عزوجل) ډېر بشونکې او رحم کونکی دی.

۲: د الله عزوجل د رحمت څخه نا اميدي انسان نور هم بې لارې کوي او بدی ته يې کشوي لکه په دې کېسه کې چې هغه سړي راهب مړ کړ او د هغه په قتل يې سل مرگونه پوره کړل.

۳: له علم نه پرته د فتوی خبره کول د خلکو او ويونکې د هلاکت سبب گرځېدلی شي.

۴: چاته چې د کومې مسئلې په باره کې مشکل وي او غواړي خپله مسئله حل کړي پکار ده، چې يو تکړه او ښه عالم نه پوښتنه وکړي.

۵: څوک چې توبه اوباسي هغه ته ضروري ده، چې د خپلو خرابو ملگرو او خرابو ځايونو کې د ناستې څخه ډډه وکړي، تر څو د هغوی سره د ناستې له امله بېرته په گناه کې واقع نه شې.

٦: د ښو خلکو سره ناسته د دې سبب گرځي، چې انسان ښه کارونه وکړي او له بدو نه ځان وساتي.

۷: د گناه کولو نه وروسته په گناه پښېمانتيا او د الله عزوجل څخه د بښنې غوښتل کول لازم دي.

۸: الله عزوجل هره گناه بښي خو شرک يواځې داسې گناه ده، چې هغه نه بښي، الله عزوجل فرمايلي:
( أن الله لا يغفر أن يشرک به )

بېشکه الله عزوجل دا نه بښي چې دهغه سره شريک ونيول شي او هغه گناه چې له شرکه ښکته وي (که کبيره وي او که وړه) هر هغه چاته يې بښي چې چاته يې و غواړي.

۹: الله عزوجل بنده ته د هغه د نيت کولو مطابق جزاء ورکوي که څه هغه عمل هم نه وي کړی، لکه په پورتنۍ کېسه کې چې هغه سړی هغه ځای ته ونه رسېده چې په کوم ځائې کی ښه خلک اوسيدل او په لاره کې مړ شو .

۱۰: هغه فرښتې چې د انسانانو روح أخلي فرق لري، کوم خلک چې ښه او صالح وي د هغوی روح د رحمت فرښتې او کوم چې بيا بد وي دهغوی روح بيا د عذاب فرښتی أخلي.

**۳: د يوه کس له امله د پوره ملت لار ښوونه :**

عَن صُهَيْب رضي الله عنه أَنَّ رسولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيه وسَلَّم قَالَ : " كَانَ مَلِكٌ فيمَن كَانَ قَبلَكُم،وكَانَ لَه ساحِرٌ،فلَمَّا كبر،قَالَ للْملك : إنِّي قَدْ كبرتُ ،فابعثْ إليَّ غُلَامَا أُعلِّمهُ السِّحر،فَبعثَ إلَيْه غُلَامَا يعلِّمه،فَكَانَ في طَريقه إذَا سَلَكَ راهبٌ ،فقَعد إلَيه وسمع كَلَامه ،فَأَعجبَه ،فكَانَ إذَا أَتَى السَّاحر مرَّ بالرَّاهب ،وقعد إلَيْه ،فإذَا أَتَى السَّاحرَ ضربَه ،فَشكَا ذَلكَ إلَى الرَّاهب ،فَقَالَ : إذَا خَشيتَ السَّاحرَ ،فقُل حبسني أَهْلي، وإذَا خَشيتَ أَهلَكَ ،فقُل حَبَسني السَّاحرُ ،فَبينما هو كَذَلكَ إذْ أَتَى علَى دابَّة عَظيمة قَدْ حَبَسَت النَّاس ،فَقَالَ : الْيوم أَعْلَم آلسَّاحرُ أَفْضل أَم الرَّاهبُ أَفْضَل ،فَأَخَذَ حجرا ،فقَالَ : اللَّهُمَّ إنْ كَانَ أَمرَ الرَّاهب أَحبَّ إلَيْكَ منْ أَمر السَّاحر ،فاقْتل هذهَ الدَّابَّةَ حتَّى يَمْضي النَّاس ،فرماها فقَتلهَا ،ومضَى النَّاس ،فَأَتَى الرَّاهبَ فَأَخْبره ،فقَالَ لَه الرَّاهبُ : أَيْ بنيَّ أَنْتَ الْيومَ أَفْضَل منِّي قَدْ بلَغَ من أَمْركَ ما أَرى ،وإنَّكَ ستبتلَى فإن ابْتُليت فَلا تَدُلَّ عَلَيَّ ،وكَانَ الْغُلَام يبرئ الْأَكْمه والْأَبرص ،ويداوي النَّاس منْ سائر الْأَدْوَاء ،فَسمعَ جليسٌ للْملك كَانَ قَدْ عمي ،فَأَتَاه بهدَايَا كَثيرة ،فقَالَ : ما ها هنالكَ أَجمعَ إنْ أَنْت شفَيْتَني ،فقَالَ : إنِّي لَا أَشْفي أَحدًا إنَّمَا يشْفي اللَّهُ ،فإنْ أَنْتَ آمنْتَ بالله دَعوتَ اللهَ فشَفَاكَ ،فآمن بالله فشفَا هُاللهُ ،فأَتَى الْملكَ فَجلس إلَيْه كما كَانَ يَجلسُ ،فقَالَ لَه الْملكُ : منْ ردَّ علَيكَ بصركَ ؟، قَالَ : ربِّي ،قَالَ : ولَكَ ربٌّ غَيْري ؟، قَالَ : ربِّي وربُّكَ اللهُ ،فَأَخذَه فلَم يزلْ يعذِّبه حتَّى دلَّ علَى الْغُلَام ،فَجيء بالْغُلَام ،فقَالَ لَه الْملكُ : أَي بنيَّ قَدْ بلَغَ منْ سحركَ ما تُبرئُ الْأَكْمه والْأَبرص ،وتَفْعَل وتَفْعل ،فقَالَ : إنِّي لاأَشْفيَ أَحدًا إنَّما يَشْفي اللهُ ،فأَخذَه فلَم يزلْ يعذِّبهُ حتَّى دلَّ علَى الرَّاهب ،فَجيء بالرَّاهب ،فقيل لَهُ : ارجعْ عن دينكَ ،فَأَبى فدعَا بالْمئشَار ،فوضع الْمئشَار في مفْرق رأْسه ،فشَقَّه حتَّى وقَع شقَّاهُ ثُمَّ جيء بجليسَ الْملك ،فقيل لَهُ : ارجعْ عن دينكَ ،فَأَبى فوضع الْمئشَارَ في مفرق رأْسه ،فشقَّهُ به حتَّى وقَعَ شقَّاهُ ،ثُمَّ جيء بالْغُلَام ،فقيل لَهُ : ارْجعْ عن دينكَ ،فَأَبَى فدَفعه إلَى نفر منْ أَصحابه ،فقَالَ : اذْهَبوا به إلَى جبلِ كَذَا وكَذَا ،فاصعدُوا به الْجبل ،فإذَا بلَغتم ذُروتَه ،فإنْ رجع عَن دينه وإلَّا فاطْرحوه ،فذَهبوا به فصعدُوا به الْجبل ،فقَالَ : اللَّهُمَّ اكْفنيهم بما شئْتَ ،فرجف بهم الْجبَل ،فَسقَطُوا وجاء يمْشي إلَى الْملك ،فقَالَ لَه الْملكُ : مافعل أَصحابكَ ؟، قَالَ : كفَانيهم اللهُ ،فدفعه إلَى نفَر منْ أَصحَابه ،فقَالَ : اذْهبوا به ،فاحملُوهُ في قُرقُور ،فتوسَّطُوا به الْبحر ،فإنْ رجع عن دينه ،وإلَّا فَاقْذفُوهُ ،فذَهبوا به ،فقَالَ : اللَّهُمَّ اكْفنيهم بما شئْتَ ،فانْكفأَتْ بهم السَّفينَةُ ،فغَرقُوا وجاء يمْشي إلَى الْملك ،فقَالَ لَهُ : الْملكُ مافعل أَصحابكَ ؟،قَالَ : كفَاني هم اللهُ ،فقَالَ للْملك : إنَّكَ لَستَ بقَاتلي حتَّى تفْعل ما آمركَ به ،قَالَ : وماهو ؟، قَالَ : تجمَع النَّاس في صَعيد واحد ،وتَصلُبُني علَى جذْعٍ ثُمَّ خذْ سهما منْ كنَانتي ،ثُمَّ ضعِ السَّهم في كَبد الْقَوس ،ثُمَّ قُلْ : باسْم اللهً

**ربِّ الْغُلَام ،ثُمَّ ارْمني ،فإنَّكَ إذَا فعلْتَ ذَلكَ قَتلْتني ،فجمع النَّاس في صَعيد وَاحد وصلَبهَ علَى جذْعٍ ،ثُمَّ أَخذَ سهمَا من كنانته ،ثُمَّ وضَع اَلسَّهم فيَ كَبْدالْقوْس ،ثُمَّ قَالَ : باسْمِ اللهَ رَبِّ الْغُلَام ثُمَّ رماه ،فوقَع السَّهم فيَ صدْغه ،فوضَع يدَه في صُدْغه فيَ موْضعِ السَّهْم ،فمَاتَ ،فقَالَ : النَّاس آمنَّا برَبِّ الْغُلَام ،آمنَّا بربِّ الْغُلَامَ ،آمنَّا بربِّ الْغلَام ،فأُتيَ الْملكُ ،فقيل لَهَ : أرأَيت ما كُنْتَ تحذَر ؟، قَدْ، واللهَ ! نزلَ بَكَ حذَرك قَدْ آمَن النَّاس ،فَأمرَ بالْأُخْدُود فيَ أَفْواه السِّكك ،فَخُدَّتْ وأَضْرم النِّيرانَ ،وَقَالَ : منَ لَم يرْجعْ عَن دينه ، فأَحموهَ فيهَا أَوقيل لَه اقْتحمْ ،ففعلُوا حتَّى جاءت امرأَةٌ ومعها صَبيٌّ لَهَا ،فتَقَاعَستْ أَنْ تَقَع فيهَا ،فقَالَ لَهَا اَلْغلَام : ياأُمَّهْ اصْبرَي ،فإنَّك علَى الْحقِّ .**

دصهيب رَضى الله عنه نه روايت دى چې وايي: رسول الله عليه الصلاةَ والسلاَم وفرمايل:

تر تاسې نه په مخکې امتونو کې يو بادشاه و او هغه سره يو کوډگر(جادوگر ) و، کله چې هغه کوډگر بوډا (سپين ږيرى) شو، نو بادشاه ته يې وويل: يو ځوان را ولېږه تر څو زه هغه ته کوډې (جادو) ور وښيم بادشاه هغه ته يو هلک ور وليږه، کوډگر به هغه ته کوډې ښودلې، هغه هلک به چې په کومه لار کوډگر ته ورته هلته به يو راهب کېناسته، دغه هلک يوه ورځ هغه راهب ته کېناست او د هغه خبرې يې واوريدى ، هغه هلک به چې هر وخت کوډگر ته ورته، نو د راهب سره به ناست و، کله به چې نا وخته کوډگر ته ورغی هغه به بيا واهه، هلک راهب ته د کوډگر د وهلو شکايت وکړ، راهب ورته وويل:

کله چې ته د کوډگر نه ډاربږى (چې ودې نه وهي) نو هغه ته وايه چې زه د کور خلکو ايسار کړى وم او کله چې د کور خلکو څخه ډاربدې، نو هغوى ته وايه چې زه کوډگر ايسار کړى وم، هغه هلک يوه ورځ په لاره تېربده، چې يو غټ ځناور يې وليد چې لاره يې بنده کړې وه، هلک د ځانه سره وويل:

نن به پوه شم چې راهب غوره دى اوکه کوډگر. هغه يوه تيږه را واخيستله او داسى يې وويل:

يالله! که تاته د کوډگر نه د راهب عمل ډېر خوښ وي، نو دا ځناور مړ کړه تر څو خلک په لاره تېر شي او بيا يې په هغه تيږه هغه ځناور وويشته، چې هغه مړ شو او خلک تير شول ، هغه هلک بيا راهب ته ورغى او ټوله قيصه يې ورته وکړه. راهب ورته و ويل:

اي ځويه ! زه چې تا وينم نو نن ورځ ته زما څخه غوره يې، ته به ډېر زر په ازمايښت کې راگير شې که چېرته ته په ازميښتونو کې را گير شې نو ما چاته مه ور ښيه.

هغه هلک به د ړندو، برص (برگي مرض) او نورو مرضونو علاج کاوه، د پاچاه د مجلس يوه ملگري چې هغه ړوند شوى و د هغه په باره کې واورېدل، ، هغه د ډېرو سوغاتونو سره هغه هلک ته راغي او ورته يې وويل:

که چېرته ته ما جوړ کړې دا ټول مال ستا دی ، هغه هلک ورته وویل: زه ددې وس نه لرم چې څوک جوړ کړم بلکې الله عزوجل شفاء ورکوي، که چېرته ته ایمان راوړې زه به الله عزوجل ته دعاء وکړم چې هغه تاته شفاء درکړي، هغه کس ایمان راوړ او الله عزوجل هغه ته شفاء ورکړه.
د بادشاه دغه وزیر بادشاه ته ورغی او د مخکې په څیر په هغه ځای کی ورسره کیناست چې مخکی به کیناسته، پادشاه ورته وویل:
ستا د سترګو نور چا بیرته درکړ، هغه ورته وویل: زما رب. بادشاه ورته وویل: آیا ته زما نه بغیر بل رب لرې؟ وزیر ورته وویل:
زما او ستا دواړو رب الله دی. بادشاه هغه ونیوه او تر دې یې سزا ورکړه چې اړ شو او بادشاه ته یې هغه هلک ور وښوده کوم چې ده ته دعاء کړی وه، پاچا هغه هلک را وغوښته، پاچا هغه هلک ته وویل:
زما بچیه! ته په کوډګرۍ کې دې درجې ته ورسېدې چې ړانده او برص ښه کوې او داسې او داسې کارونه کوې. هلک پاچا ته و ویل:
زه چاته هم د شفاء ورکولو وس نه لرم بلکې الله عزوجل شفاء ورکوي. پاچا هغه دومره وواهه تر هغې چې هغه د راهب نوم ور وښوده. باچا راهب ونیوه او هغه ته یې وویل: خپل دین څخه وګرځه. خو راهب انکار وکړ او په خپل دین ولاړ وه. پاچا اره را وغوښته او د راهب په سر یې کېښوده تر څو هغه نیمایي کړي، خو هغه لا هماغسې په خپل دین کلک ولاړ و، هغه راهب یې دوه ټوټې کړ بیا یې هغه وزیر را وغوښته او ورته یې وویل: له خپل دین نه وګرځه، هغه انکار وکړ، د هغه په سر یې هم اره کېښوده او داسې یې اره کړ چې دوه ټوټې شو. ورپسې یې هغه هلک را وغوښت او ورته یې وویل: له خپل دین څخه واوړه. هغه انکار وکړ. پاچا هغه خپلو یوه ډله دوستانو ته وسپاره او ورته یې وویل:
دا فلاني غره ته بوځئ او د هغه غره پاس څوکې ته یې وخېژوئ. کله چې د غره څوکې ته ورسیدل دې هلک ته ووایئ، چې خپل دین نه واوړي، که چېرته هغه د خپل دین نه و ګرځېده، نو ښه که نه بیا یې د هغه ځای نه ښکته را وغورځوئ. هغوی دا هلک د غره سر ته وخیژاوه هغه هلک هلته داسي دعاء وکړه: یاالله څنګه دې چې خوښه وي هغسې ما د دوی له شر نه په امان کې وساته.
(دهغه له دعا سره) غر وخوځېده (ولړځېده) او هغه کسان ترینه لاندې را وغورځېدل. هغه هلک پاچا ته راغی. پاچا ترینه (په حیرانی سره) پوښتنه وکړه: ستا سره چې کوم کسان تللي ول هغوی څه شول ؟ هلک ورته وویل: الله عزوجل زه د هغوی د شره نه وساتلم.
پاچاه هغه نورو کسانو ته وسپاره او ورته یې وویل: دا په یوه کشتۍ کې سور کړئ او د بحر منځ ته یې ورسوئ. کله چې د بحر منځ ته ورسیدئ نو ده ته ووایئ که د خپل دین نه واوښته نو پرې یې ږدئ که نه نو بیا یې اوبو ته ور وغورځوئ. هغوی چې کله د بحر منځ ته ورسېدل هلک الله عزوجل ته دعا وکړه : یاالله ته چې څنګه غواړې هغسې ما د دوی د شر څخه وساته په هغوی باندې کشتۍ واوښتله او

دوی د کشتۍ سره ډوب شول او هغه هلک پاچا ته روغ را وګرځېده. پاچا ترېنه وپوښتل: تا سره چې کوم کسان تللي ول هغه څه شول؟ هلک ورته وویل: الله عزوجل زه د هغوی د شره څخه وساتلم. بیا هلک پاچا ته وویل:

ته ما تر هغې نه شې مړ کولی تر څو زما په وینا عمل ونه کړې؟ پاچا ورته وویل: هغه څه شی دی؟! هلک ورته وویل: ټول خلک په یو میدان کې را غونډ کړه او په یوه لرګي پورې ما وتړه، بیا زما د غشو له کڅوړې څخه یو غشی را واخله او هغه بیا په لینده کې کېږده او ووایه: د هغه الله په نوم چې د دغه هلک رب دی؟ بیا ما په غشي وو‌له. که چېرته ته داسې وکړې نو په دې توانېږی چې ما قتل کړې پاچا خلک یو میدان ته را ټول کړل او هغه هلک یې په یوه لرګي پورې وتاړه او بیا یې د هغه د غشو د کڅوړې څخه غشی را واخست او ویې ویل: د هغه الله په نوم چې د دغه هلک رب دی او بیا یې هلک په اورمیږ (څټ) کې وویشت هغه هلک خپل لاس په هغه ځای کېښود په کوم ځای چې لګېدلی و او مړ شو. کله چې خلکو دا حال ولیده، نو خلکو وویل: مونږ ددغه هلک په رب باندی ایمان راوړو، مونږ د دغه هلک په رب ایمان راوړو، مونږ ددغه هلک په رب ایمان راوړو. پاچا ته وویل شول چې د څه نه ډارېدې هماغه وشول (یعني خلکو ایمان راوړو) پاچا حکم وکړ چې د لارو په غاړو باندی کندې (خندق) وباسي، کله چې خندق وویستل شول په هغې کې اور بل شو او بیا بادشاه وویل: څوک چې د خپل دین(یعنې د هغه هلک دین) نه وانه وړي، نو هغوی په دغه خندق کې ور وغورځوی او یا هغوی ته ووایئ چې ځانونه ور وغورځوي (ټوپ ور ووهي) خلکو همداسې وکړل تر دې چې یوه ښځه راغله چې دهغې په غېږ کې زوی هم وه، هغه ښځه وروسته شوه چې ور ونه غورځېږی(یعنې وروسته شوه د غورځېدلو نه) دهغې د غېږې ماشوم ورته وویل: مورې! صبر وکړه ته په حقه یې.

**دحدیث تخریج:**

مسلم واللفظله : کتاب الزهد (والرقائق) باب : قصة أصحاب الأخدود والساحر والراهب والغلام،حدیث : ( ۳۰۰۵) .

ترمذي : أبواب تفسیرالقرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم،باب : ومن سورة البروج،حدیث : (۳۳۴۰) .

**د حدیث فائدې:**

۱: د الله عزوجل او اسلام دښمنانو تل د دې هڅه کړې چې د کم او لږ عمر خلک په خپلو اهدافو کې راګیر کړي او هغه بیا هغسې د خپلو موخو لپاره استعمال کړي څنګه یې چې خوښه وي ځکه همدغه

ماشومان د راتلونكي مشران جوړېږی، څکه خو هغه جادوگر پاچا ته وویل: زه بوډا شوی یم یو ماشوم (هلک) را ولېږه چې جادو ورته ور وښیم.

۲: الله عزوجل چې چاته د خیر او هدایت اراده وکړي هغه ته بیا لاره او کار اسانه کوي، لکه څنګه چې هغه هلک جادوگر ته ورته تر څو جادو ور ښخه زده کړي خو په لار کې یې راهب ولیده.

۳: دُعا د مسلمان سلاح ده، څنګه چې هغه هلک په لاره روان و، نو په لاره کې یې هغه وحشي ځناور ولید او دُعا یې وکړه.

۴: بعضو نېکو، صالحو او پرهیزګاره مسلمانانو ته الله عزوجل کرامات هم ورکوي لکه هغه هلک چې به خلک دمول او ړوندوالی او د پېس مرض به یې الله ښه کاوه.

۵: د مسلمان تر ټولو لوی فکر باید د الله عزوجل په لاره کې د دعوت او نېکو ته د بلنې وي لکه څنګه چې هغه هلک د پاچاه وزیر ته وویل: زه خلک نه روغوم بلکې الله ورته صحت ورکوي، که چېرته ته ایمان راوړې زه به الله ته دعا وکړم.

٦: کله چې د کوم مسلمان ایمان په الله ډېر پوخ او کلک شي، نو هغه بیا د ایمان تر ټولو لویو درجو ته رسیږي لکه څنګه چې یې په دغه کیسه کې هغه سړی د سر له خوا نه دوه ځایه اره کړ، خو د الله عزوجل مینه او ایمان ورته د خپل ځان ښخه ډېر ګران وه.

۷: کله چې یو مسلمان په کوم مشکل کې راګیر شي او یا هم ورسره څوک ظلم کوي باید دعا وکړي لکه هغه ماشوم چې کړې وه، کله چې یې هغه د غر نه را غورځاوه او په اوبو کې یې غرقاوه.

۸: په عمل کې د برکت سبب او د هغه ربنتیا کېدل د بسم الله ویلو سره تړلی دی لکه څنګه چې په دغه کیسه کې هلک پاچا ته وویل: دا ووایه، شروع کوم په نوم د دغه هلک د رب او بیا ما په غشی ووله، که چېرته ته داسې (بسم الله ووایې) کولی شي چې بیا ما قتل کړې.

۹: په دې کېسه کې د هغو کسانو ذکر هم راغلی، چې هغوی مسلمانان شول، نو د هغوی مسلمانېدل هم د دغه هلک چې پاچا مړ کړ په نېکیو کې حسابېږی، څکه هغه خلک چې مسلمانېدل نو ویې ویل چې مونږ د دغه هلک په رب ایمان راوړی دی، مونږ د دغه هلک په رب ایمان راوړی دی دغه خلک د دغه هلک له امله مسلمانان شول. د سعد بن سهل رضی الله عنه نه یو اوږد حدیث روایت دی، چې رسو ل الله علیه الصلا ة والسلام په کې وفرمایل:

**(لَأَنْ يُهْدَى بِكَ رَجُلٌ وَاحِدٌ خَيْرٌ لَكَ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ )** . .

ژباړه: که ستا په وجه (له امله) الله عزوجل یو کس ته هدایت وکړي، نو دا ستا لپاره د سرو اوښانو د درلودلو ښخه بهتره دی.

بخاري: کتاب فضائل اصحاب النبي صلی الله علیه وسلم، باب: مناقب علی بن أبی طالب.... (۳۷۰۱)
مسلم: کتاب فضائل الصحابة، باب: من فضائل علې بن ابي طالب: ( ۲۴۰۶)
ابوداود: کتاب اول کتاب العلم . باب فضل النشر العلم ( ۳۶۶۱)

۱۰: په دعوت کې دا شرط نه دی چې یواځې پلار، مور او یا هم نور مشران دې بچیو او وړو ته بلنه ورکړي بلکې واړه هم مشرانو ته دعوت ورکولی شي لکه په دغه کیسه کې چې ماشوم خپلې مور ته وویل چې، صبر وکړه ته په حقه یې.
۱۱: د دې کېسې نه مالومه شوه چې په مخکنیو امتونو کې هم مؤمنان په خپل دین ډېر کلک ولاړ وو لکه وزیر او راهب ته چې بادشاه سخته سزا ورکړه، خو هغوی د خپل دین څخه وا نوښتل.

**۴ : د الله تعالی د رحمت له کبله د رسول الله علیه السلام امت ته غنیمت حلال شو .**

عن أَبي هريرةَ رضي الله عنه ، قالَ: قَالَ رسولُ الله صَلّى الله عَلَيْه وسلّم: " غَزَا نَبيٌّ من الْأَنْبياء ،فَقَالَ لقَوْمه : لَا يَتْبَعْني رجل قَدْ ملَكَ بضْع امْرأَة ، وهو يريدُ أَنْ يَبْني بها ،ولَمَّا يبْنِ ،ولَا آخر قَدْ بنى بنْيَانًا ، ولَمَّا يرفَعْ سقُفَهَا ، ولَا آخر قَد اشْترىً غنَما – أَو خَلفَاتَ – وهو مُنْتَظرٌ ولَادَها "،قَالَ: " فَغَزَا ، فَأَدْنَى للْقَرْيَة حين صَلَاة الْعَصْر، أَو قَرِيبا منْ ذَلكَ ، فَقَالَ للشَّمْس : أَنْت مأْمورةٌ، وأَنَا مأْمور ،اللهمَّ ،احْبسْهَا عَلَيَّ شيْئا ،فَحُبسَتْ عَلَيْه حتَّى فَتَح الله عَلَيْه " ،قَالَ: " فَجَمعوا ماغَنمُوا ،فَأَقْبَلَت النَّار لتَأْكُلَهُ ،فَأَبتْ أَنْ تَطْعمه ،فَقَالَ: فيكُمْ غُلُولٌ ،فَلْيُبَايعْني منْ كُلِّ قَبيلَة رجل ،فَبايَعوه ،فَلَصقَتْ يد رجلٍ بيده ،فَقَالَ: فيكُمُ الْغُلُولُ ،فَلْتُبَايعْني قَبيلَتُك ،فَبَايَعَتْهُ "،قَالَ: " فَلَصقَتْ بيد رجلَيْنِ أَوْثَلَاثَة ،فَقَالَ: فيكُمُ الْغُلُولُ ،أَنْتم غَلَلْتم "،قَالَ: " فَأَخْرجوا لَه مثْلَ رأْسِ بقَرة منْ ذَهبٍ

،قَالَ: فَوضَعوهَ في الْمَال وهَو بالصَّعيد ،فَأَقْبَلَت النَّار فَأَكَلَتْهَ ،فَلَم تَحلَّ الْغَنَائمُ لأَحَد منْ قَبْلنَا ،ذَلكَ بأَنَّالله تَبارَكَ وتَعالَىَ رأَى ضَعفَنا وعجزنا ،فَطَيَّبها لَنَا .

د أَبو هرَيرة رضى الله عنه نه روايت دى، چې رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل:

په نبييانو کې يو نبي غزاء کوله ، خپل قوم ته يې وويل: هغه څوک دې له ما سره نه ځي چا چې کوژده کړي وي او هغه تر اوسه واده نه وي کړی او غواړي چې واده وکړي او نه دې هغه څوک راسره ځي، چې هغوی کور جوړ کړی وي او د هغه بام يې لا نه وي جوړ کړی( د کوټي چت يې نه وی اچولی )، او نه هغه څوک چې هغوی اوزې (چېلی ) او نور حيوانات لري او هغوی په دې انتظار کې وي، چې کله به بچي راوړي، هغه پيغمبر غزاء ته روان شو او د مازديگر د لمانځه يا هغه ته نزدې وخت کې هغه کلي ته ورلنډ شو(چېرته چې په جهاد کولو مامور شوی و) لمر ته يې وويل: ته هم تابعدار يې او زه هم، يا الله دا لمر د لږ وخت لپاره را ايسار کړې، لمر ودرېده تر دې چې هغوی فاتح شول، هغوی د غنيمت مال جمع کړ او اور راغی تر څو د هغوی غنيمت وخوري، مگر اور هغه د غنيمت مال ونه خوړ، هغه نبي وويل: په تاسو کې چا د غنيمت په مال کې خيانت کړی دی، تاسو د هرې قبيلې يو ،يو کس زما سره بيعت وکړئ، هغوی بيعت وکړ ، د يوه کس لاس د هغه نبي د لاس سره ونښته. نبي عليه السلام هغه ته وويل: ستاسو په قبيله کې چا خيانت کړی دی، ستا قوم دی ما سره بعت وکړی تر دې چې د هغه سړي ټولې قبيلې د هغه سره بيعت وکړ، د دغه قبيلې د دوو يا دريو کسانو لاس د هغه نبي عليه السلام دلاس سره ونښته هغه ورته وويل: په تاسو کې چا خيانت کړی دی، تر دې چې هغوی د غوا د سر په اندازه سره زر راوړل، هغوی هغه سره زر په يو لوړ ( اوچت) ځای کې د هغه مال سره يو ځای کېښودل، اور راغی او هغه د غنيمت مال يې وخوړ. بيا رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل : زمونږ نه مخکې هيچا ته هم د غنيمت مال نه و حلال، مگر الله عزوجل زمونږ کمزوري او عاجزي وليدله نو مونږ ته يې غنيمت حلال کړ.

**دحديث تخريج:**

بخاري : كتاب : فرض الخمس ،باب : قول النبي عليه السلام أحلت لكم الغنائم ،حديث : ( ٣١٢٤) او په كتاب النكاح ، باب : من أحب البناء فبل الغزو (٥١٥٧ ) .
مسلم واللفظ له : كتاب الجهاد والسير ،باب : تحليل الغنائم لهذه الأمة خاصة،حديث (١٧٤٧).

**د حديث فائدى:**

١: د مخکنيو ملتونو غنيموتونه ته به اور راغی او هغه به يې و خوړل.
٢: الله عزوجل په خپله لار کې پاک او حلال مال قبلوي.

۳: غنیمتونه صرف د رسول الله علیه الصلاة والسلام امت ته حلال شول مخکې نورو قومونو ته حرام ول.
۴: الله عزوجل چې کله د رسول الله علیه الصلام والسلام د امت کمزوري او عاجزي ولیدله نو غنیمتونه یې ورته حلال کړل.

**۵ : په دم سره شفا موندل :**

**عن أَبِي سَعيد رَضِي اللهُ عَنْه ،قَالَ: انْطَلَقَ نَفَر منْ أَصْحَاب النَّبِيِّ صلّى الله عَلَيْه وسلّم في سَفْرَة سافَروها ،حَتَّ ىنزلُوا عَلَى حيٍّ من أَحْيَاء العَرَب ،فَاستضافُوهم فَأَبوا أَنْ يضيِّفُوهم ،فَلُدغَ سيِّد ذَلكَ الحيِّ ،فَسعوا لَه بكُلِّ شَيْء لاينْفَعه شيء ،فَقَالَ بعضهم : لَو أَتيتم هؤُلاَء الرَّهْطَ الّذين نَزلُوا ،لَعَلّه أَنْ يكُونَ عنْدَ بعْضهم شيءً ،فَأَتوهم ،فَقَالُوا : يا أَيُّها الرَّهْطُ إنَّ سيِّدَنَا لُدغَ ،وسعينا لَه بكُلِّ شَيْء لا ينْفَعه ،فَهل عنْدَ أَحَد منْكُمْ من شَيْء ؟ فَقَالَ بعضهم: نعم ،والله إنِّي لَأَرْقي ،ولَكنْ والله لَقَد استَضفْنَاكُم فَلَم تضيِّفُونَا ،فَمَا أَنَا براقٍ لَكُم حتَّى تجعلُوا لَنَا جعلًا ،فَصالَحوهم عَلَى قَطيعٍ من الغَنَمِ**

**،فَانْطَلَقَ يَتفلُ عَلَيْه ،ويقْرأُ : ( الحَمْدُلله ربِّ العَالَمين ) فكَأَنَّما نُشطَ منْ عقَال ،فَانطَلَق يَمْشي وما به قَلَبةٌ ،قالَ: فأَوفَوهم جعلَهم الذي صَالَحوهم عَلَيْه ،فَقَالَ بعضهم : اقْسموا ،فَقَالَ الذي رقَى : لاَ تَفْعلُوا حتَّى نأْتي النَّبيَّ صَلَّى الله عَلَيْه وسلَّم فَنَذْكُرَ لَه الذي كَانَ ،فَنَنْظُر ما يأْمرنا ،فَقَدمُوا علَى رَسُول الله صَلَّى الله عَلَيْه وسلَّم فَذَكَروا لَه ،فَقَالَ: «وما يدْريك أَنَّها رقْيةٌ ؟ »، ثُمَّ قَالَ : «قَدْ أَصبتم ،اقْسموا ،واضْربوا لي معكُم سهما » فَضَحكَ رسولُ الله صلَّى الله عَلَيْه وسلَّم .**

د أبو سعيد الخدري رضی الله عنه نه روايت دی چې وايي:

د رسول الله صلی الله عليه وسلم يوه ډله صحابه په سفر لاړل، هغوی د عربو يوې قبيلې سره پړاو واچوه، صحابه کرامو وغوښتل چې دغه قبيله د دوی مېلمستيا وکړي، خو هغې قبيلې انکار وکړ او دوی يې ميلمانه نه کړل ، د دغه قبيلې مشر مار وچيچه د قبيلې غړو د هغه هر رقم علاج وکړ، مگر د هغوی دغه علاج هېڅ فائده ونه کړه. د قبيلې يو کس وويل: که دغه کسانو ته ورشي چې هغوی دلته پړاؤ اچولی کېدای شي د هغوی سره څه وي، هغوی د صحابو رضی الله عنهم ځای ته راغلل او ورته يې وويل:

ای خلکو! زمونږ د قبيلې مشر مار چيچلی دی مونږ ډېر کوشش وکړ خو هېڅ فائده يې ونه کړه په تاسو کې کوم کس څه لري ؟ يو صحابي رضی الله عنه وويل: هو! په خدای قسم! زه دم کوم، مونږ ستاسو نه مېلمستيا وغوښته خو تاسو انکار وکړ تر هغې به زه دم ونه کړم تر څو چې تاسو ماته عوض را نه کړی هغوی، هغه ته د اوزو د رمې ورکولو وړانديز وکړ هغه صحابي په هغه کس باندې يې د فاتحې سورت لوسته او دم يې پرې اچوه تر دې چې هغه ښه شو. داسې ښکارېده لکه چا چې د تړلو څخه خلاص کړی وی هغوی چې د صحابې سره کومه وعده کړې وه هغه يې ورکړه. په صحابو رضی الله عنهم کې يو کس وويل: راځئ چې دا اوزې په خپلو کې تقسيم کړو، کوم صحابي چې دم اچولی و هغه وويل: صبر وکړی تر څو رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام ته ورشو او هغه ته ټوله کيسه ووايو، چې هغه څه حکم کوي؟! کله چې هغوی رسول الله عليه الصلاة والسلام په خدمت کې حاضر شول ټوله کيسه يې ورته وکړه، رسول الله عليه الصلاة والسلام ورته وفرمايل: ته څنگه پوه شوې چې په دې (د فاتحې سورت ) سره دم کېږي. بيا هغه عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل: تاسو ښه وکړل هغه تقسيم کړی او زما برخه هم په کې وکړئ. بيا رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام مبارک وخندل.

**د حديث تخريج :**

صحيح البخاري واللفظ له: كتاب الإجارة ، باب مايعطى فى الرقية على أحياء العرب بفاتحة الكتاب حديث: (۲۲۷۶ ) او په كتاب الطب ، باب : الرقى بفاتحة الكتاب، (۵۷۳۶)او په باب : النفث فى الرقية كې ( ۵۷۳۷) هم راغلى او همداسې په كتاب : فضائل القرآن ، باب : فضل فاتحة الكتاب (۵۰۰۶)
صحيح مسلم: كتاب السلام، باب جواز أخذ الأجرة على الرقية بالقرآن و الأذكار، حديث: (۲۲۰۱)
سنن الترمذى: أبواب الطب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم، باب ما جاء فى أخذ الأجر على التعويذ، حديث: (۲۰۶۳ )
سنن أبى داود: كتاب الاجارة، باب فى كسب الأطباء، حديث: (۳۴۱۸)
سنن ابن ماجه: أبواب التجارات، باب أجر الراقى، حديث:( ۲۱۵۶ )

**د حديث فائدې:**

۱: كه چېرته به چا د صحابه كرامو سره بد وكړل، نو هغوى رضى الله عنهم به ورسره ښه كول.

۲: په سورة فاتحې سره د زهر لړونكي شيانو دم كېږى.

۳: قرآن كريم كې د هر مرض علاج شته. الله عزوجل فرمايلى:(وننزل من القرآن ماهو شفاء و رحمة للمؤمنين)

۴: صحابه رضى الله عنهم به د حرامو شيانو څخه سخته وېره كوله او ځان به يې ترينه ډېر په احتياط ساته لكه دغه كيسه كې صحابه كرامو د هغه اوزو د تقسيم خبره وكړه او بل صحابي ورته وويل: چې تر څو رسول الله عليه الصلاة والسلام ته نه يو ورغلي او د هغه نه مو پوښتنه نه وي كړي دا كار مه كوئ.

۵: د يو چا په دمولو سره د دم پيسې اخيستى شى.

**٦ : په رسول الله صلى الله عليه وسلم د قران كريم نازليدل او خلك اسلام ته رابلل**

**عَن عَائشَةَ أُمِّ الْمُؤْمنين أَنَّها قَالَتْ : (( أَوَّلُ ما بُدئ به رسولُ الله صلى الله عَلَيْه وسلم من الْوحيِ الرُّؤْيا الصَّالحَةُ في النَّوْم ،فكَانَ لايرى رؤْيا إلا جاءتْ مثْل فَلَق الصُّبحِ ،ثُمَّ حبِّبَ إلَيْه الْخَلاء وكَانَ يخْلُو بغَار حراء فَيتحنَّث فيه ـ وهُوا لتَّعبُّد ـ اللَّيالي ذَوات الْعدد قَبل أَنْ ينْزِع إلَى أَهْله ويتزوَّد لذَلك ، ثُمَّ يرْجِعُ إلى خَديجَةَ فَيتزوَّد لمثْلَها ، حتَّى جاءه الْحقُّ وهَو في غَارِ حراء ، فَجَاءَهُ الْملَك فَقَالَ: اقْرأْ ، قَالَ :ما أَنا بقَارئ ، قَالَ : فَأَخذَني فغطَّني حتَّى بلَغ منِّي الْجهد ثُمَّ أَرسلَني فقَال: اقْرأْ ، قُلْتَ :ما أَنَا بقارئ ، فَأَخذَني فغطَّني الثَّانية حتَّى بلَغ منِّي الْجهد ثُمَّ أَرسلني فَقَالَ : اقْرأْ، قُلْتَ ما أَنَا بقَارئ ، فَأَخذَني فَغطَّني الثَّالثَة ثُمَّ أَرسْلَني فقَال :(( اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ، خَلَقَ الإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ، اقْرَأْ وَ رَبُّكَ الأَكْرَمُ ، )) ،(العلق : ۱ ،۳ ) ،فَرجع بها رسولُ الله صلى الله عَلَيْه وسلم يرجف**

**فُؤَادَه ، فَدَخَل عَلَى خَديجَةَ بنْت خُوَيْلد رضي اللهُ عَنْها فَقَالَ : زَمِّلُوني ، زَمِّلُوني فَزمَّلُوهُ حتَّى ذَهب عَنْهُ الرَّوع ، فَقَالَ لخَديجَةَ – وأَخْبرهاَ الْخَبَر – لَقَدْ خَشيتُ عَلَى نَفْسي ، فَقَالَتْ له خَديجَةُ: كَلا واللهِ! ما يخْزيكَ اللَّهُ أَبدًا، إنَّكَ لَتصل الرَّحم ، وتَحملُ الْكَلَّ ،وتَكْسبُ الْمعْدُومَ، وتَقْري الضَّيْفَ ، وتُعينُ عَلَى نَوَائب الْحقِّ ،فَانْطَلَقَتْ به خَديجَةُ حتَّى أَتتْ به ورقَةَ بنَ نَوفَلِ بْنِ أَسَد بْن عَبْد الْعزَّى - ابنَ عمِّ خَديجَةَ – وكَانَ امرأً قَدْ تَنَصَّر فَي الْجاهليَّة ، وكَانَ يكْتب الْكتاب الْعبْرَانيَّ، فَيَكْتُبُ منْ الإنْجيل با لْعبْرانيَّة ماشاء اللهُ أَنْ يكْتب ، وكَانَ شَيْخًا كَبيرا قَدْ عَمي ، فَقَالَتْ لَهُ خَديجَةُ: يا ابن عَمِّ اسْمعْ منْ ابْنِ أَخيكَ ،فَقَالَ لَه ورقَةُ : ياابن أَخي ما ذَا تَرى ؟ فَأَخْبرهُ رسولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسلَّم خَبر ما رأَى ، فَقَالَ لَه ورقَةُ :هذَا النَّاموس الذي نَزَّلَ اللهُ عَلَى موسى ، يا لَيْتَني فيها جذَعٌ ، لَيْتَني أَكُونُ حيًّا إذْ يخْرجكَ قَومكَ ، فَقَالَ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم :أَو مُخْرجيَّ هم ؟ قَالَ: نعَم لَم يَأْت رجلٌ قَطُّ بمثْلِ ما جئْتَ به إلا عُودي ، وإنْ يدْرِكْني يومكَ أَنْصركَ نصرًا مؤزَّرا ،ثُمَّ لَم ينْشَب ورقَةُ أَنْ تُوفِّي و فَتَر الْوحْي .**

د أم المؤمنين عائشې رضی الله عنها نه روايت دی چې فرمايي:

په اوله کې به چې په رسول الله عليه الصلاة والسلام وحی نازليده هغه به ښه خوبونه ليدل، رسول الله عليه الصلاة والسلام به چې د شپې کوم خوب وليده هغه به لکه د سهار د رڼا په څير داسی ښکاره او صحيح ثابتېده، بيا رسول الله عليه الصلاة والسلام ته تنهايي خوښه شوه هغه عليه الصلاة والسلام به د حراء غار ته لاړ او هلته به پرله پسې څو شپې په عبادت بوخت و ، تر څو به چې به خپل کور ته ستون شو او د بيا لپاره به يې ځان تيار کړ ، بيا به د خديجې رضی الله عنها کور ته لاړ او د هغه ځای نه به يې د نورو ورځو لپاره خوراک واخيست او غار حراء ته به لاړ تر دې چې هغه عليه الصلاة والسلام ته حق ښکاره شو او جبرائيل عليه السلام ورته راغی او ورته يې وويل: ووايه (ولوله): رسول الله عليه الصلاة والسلا ورته وفرمايل: زه لوستی نه يم! رسول الله عليه الصلاة والسلام فرمايي: هغه (جبرائيل عليه السلام) زه دومره کلک ونيولم (دومره زور يې راکړ) چې ما يې وس نه درلود بيا زه هغه پرېښودلم او راته يې وويل: ووايه (ولوله) ما ورته وويل: زه لوستی نه يم! هغه زه بيا ونيولم او دومره زور يې راکړ چې زما طاقت ځواب راکړ بيا يې پرېښودلم او راته يې وويل: ولوله ما ورته وويل: زه لوستی نه يم. رسول الله عليه الصلاة والسلام فرمايي: هغه زه بيا د دريم ځل لپاره ونيولم او دومره زور يې راکړ چې زما حوصلې ماته ځواب راکړ او راته يې وويل: و وايه :(( **اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ، خَلَقَ الإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ، اقْرَأْ وَ رَبُّكَ الأَكْرَمُ ،** )) ،(**العلق : ١ ،٣**) رسول الله عليه الصلاة والسلام د همدغه آياتونو سره د غار حراء نه په داسې حال کې د خديجې رضی الله عنها کور ته لاړ چې د دغې واقعې له امله يې زړه

رېږدېده. کله چې د خدیجې رضی الله عنها کورته لاړ هغې ته یې وویل: ما په کمپله کې ونغاړه ، ما په کمپله کې تاو کړه. هغه علیه الصلاة والسلام یې په کمپله کې پټ کړ تر دې چې هغه علیه الصلاة والسلام ارام شو، بیا یې خدیجې رضی الله عنها ته ټوله کیسه وکړه او ورته یې وویل: زه په خپل ځان باندی و ویریدم .

خدیجې رضی الله عنها ورته وویل: نه داسې نه ده په الله قسم چې هغه به تا کله هم رسوا نه کړی، ته د ښو اخلاقو څښتن یې، ته د خپلوانو پوښتنه کوې، د بې کسو او غریبو ملګری او مددګار یې. میلمه نواز یې او دخلکو مصیبتونه لرې کوې. خدیجې رضی الله عنها رسول الله علیه الصلاة والسلام ورقة بن نوفل بن اسد ته ور ووست، چې هغه د خدیجې رضی الله عنها دتره ځوی و او په جاهلیت کې نصراني شوی و ، د عبراني ژبې لیکوال و او هغه به انجیل په عبراني ژبه لیکه. هغه ډېر سپین ږیری شوی و او په سترګو ړوند و، خدیجې رضی الله عنها ورقة بن نوفل ته وویل: ای د تره ځویه! د وراره خبره دې واوره! ورقة بن نوفل رسول الله علیه الصلاة والسلام ته عرض وکړ: وراره څه دی ولیدل ؟ رسول الله علیه الصلاة والسلام چې څه لیدلي وو د هغې ټوله کیسه یې ورته وکړه. ورقه چې کله د رسول اله علیه الصلاة والسلام خبرې واورېدلې ورته یې وویل: دا خو هماغه ناموس (تر ټولو اوالعزمه فرښته جبرائیل علیه السلام) دی کوم چې موسی علیه السلام ته وحیه راوړې وه. کاش چې زه ستا د نبوت په ورځو کې ځوان او تکړه وای. کاش زه تر هغه وخته ژوندی پاتی شم په کوم وخت کې چې ستاخپل قوم تا له خپل ښاره وباسي. رسول الله علیه الصلاة والسلام په تعجب سره وپوښتل: ایا هغوی به ما اوباسی؟! ورقة عرض وکړ: چا چې هم ستا غوندې دعوت کړی دی د هغه سره خلکو دښمني کړې ده که چېرته زه په هغه وخت کې ژوندی و اوسم زه به ستا تر ټولو کلک ملګری و اوسم څو ورځې وروسته ورقة بن نوفل مړ شو او د څه وخت لپاره وحیه نازلیدل هم بند شول.

### د حدیث تخریج:

بخاری واللفظ له: کتاب بدء الوحی، باب: کیف کان بدء الوحی الی رسول الله صلی الله علیه وسلم، حدیث: (۳) او په کتاب: احادیث الأنبیاء، باب: (واذکر فی الکتب موسی انه کان مخلصا وکان رسولانبیا، (۳۳۹۲) همداسې په کتاب: التفسیر: سورة (اقراء باسم ربک الذی) ( ۴۹۵۳) او په: کتاب التعبیر، باب: اول ما بدئ به رسول الله صلی الله علیه وسلم من الوحی الرؤیا الصالحة، (۶۹۸۲)
مسلم: کتاب الایمان، باب: بدء الوحی الی رسول الله صلی الله علیه وسلم، حدیث: (۱۶۰)
ترمذی: أبواب المناقب عن رسول الله، باب: فی ذکر رؤیا الصادقة عند بدء النبوة، حدیث: (۳۶۳۲)

### د حدیث فائدې:

۱ : رسول الله علیه الصلاة والسلام ته به په اوله کې وحیه په خوب کې راتله او هغه به سهار ته رښتیا شوه

۲: رسول الله علیه الصلام والسلام په غار حراء کې تنهايي خوښوله.

۳: جبرائيل عليه السلام چې به رسول الله عليه الصلاة والسلام په خپله غېږه کې کلک نيوه، نو د هغې نه يې مراد داوه تر څو هغه عليه الصلام والسلام جبرائيل عليه السلام ته په په زړه او ذهن سره متوجه شی چې هغه څه وايي.

۴: جبرائيل عليه السلام چې خپلې خبرې درې ځلې تکرار کړې د دې نه يې مراد دا وه، چې هغه په دې يقيني کړي، چې هغه ته ډېر مهم څه ويل کېدونکي دي.

۵: اولنی آيت چې په رسول الله عليه الصلاة والسلام نازل شو هغه د ا اقرأ باسم ربک الذی خلق دی.

٦: خديجه رضی الله عنها د اخلاقو يوه ډېره ښائسته نمونه وه، کله چې رسول الله عليه الصلاة والسلام د غار حراء نه راستون شو او هغه عليه السلام ريږديده نو هغې رضی الله عنها په ټوټه کې تاو کړ او ورته يې وويل: الله عزوجل به تا کله هم نه رسوا کوي، ځکه ته عليه السلام د خلکو سره ښيگڼه کوې او داسی نور.

۷: د ښو صفاتو څخه يو هم د خپلوانو سره نيکي او د هغوی پوښتنه کول دي که هغه نېکي په مال وي که په خدمت وي او که په لېدلو او پوښتنه وي.

۸: د ښو صفاتو څخه يو هم د غريبو او يتميانو سره مرسته او د هغوی پوښتنه کول دي.

۹: يو ښه مسلمان ته پکار دي، چې هغه ميلمه دوست او ميلمه خوښونکی وي.

۱۰: په دې کيسه کې د خديجې رضی الله عنها دپوهې کامليت هم معلومېږی، د هغې رايه د زړه قويوالی او ښه نظر، د علي بن ابي طالب نه روايت دی، چې رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل: (خَيْرُ نِسَائِهَا مَرْيَمُ ابْنَةُ عِمْرَانَ وَخَيْرُ نِسَائِهَا خَدِيجَةُ ).

مريم بَنتَ عمران عليَها السلام دَ خپَل وخَت تر ټولو ښه ښځه وه او خديجه رضی الله عنها د دې امت تر ټولو بهترينه ښځه ده.

بخاري: کتاب احاديث الانبياء، باب: (واذ قالت الملئکة يمريم ان الله اصطفک ) حديث، (۳۴۳۲)
مسلم: کتاب فضائل الصحابة، باب: فضائل خديجة أم المؤمنين رضی الله عنها (۲۴۳۰)

۱۱: په حديث کې د ناموس نه مراد جبرائل عليه السلام دی او ناموس د خير رازدان ته وايي. الله عزوجل جبرائيل عليه السلام د وحی ليږلو لپاره ټاکلی وه.

۱۲: داسې هېڅ نبي نه دی راغلی، چې قوم يې د خپل کلی څخه نه وي ويستلی، الله عزوجل بيا هغوی بيرته کامياب کړي او خپل کلي او ښار ته کامياب راستانه شوي وي لکه رسول الله عليه الصلاة والسلام چې د مکې نه مدينې ته هجرت وکړ او بېرته فاتح مکې مکرمې ته ننوت.

**۷ : قران کريم اطمينان او خشوع ده .**

**عَن عَبْدالله ، قَالَ : قَالَ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم : " اقْرَأْ عَلَيَّ ،قَالَ : قُلْتَ : أَقْرَأُ عَلَيكَ وعَلَيكَ أُنْزِلَ ؟،قَالَ : إِنِّي أَشْتَهِي أَنْ أَسمعهُ مِنَ غَيْرِي ،قَالَ : فَقَرَأْتُ النِّساء حتَّى إِذَا بلَغْتَ :(فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْكُلِّ أُمَّةٍ بشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا ) ،(سورة النساء ۴۱آيت) ،قَالَ لي : كُفَّ أَو أَمْسكْ ،فَرأَيت عَينيه تَذْرِفَان " .**

د عبدالله بنَ مسعود رضى الله عَنه َنه روايت دى چې وايي: رسول الله عليه الصلاة والسلام راته وفرمايل: ماته قرآن کريم واوروه (د قرآن کريم تلاوت وکړه)، عبد الله بن مسعود رضى الله عنه وايي، ما رسول الله عليه الصلام والسلام ته عرض وکړ چې: يا رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام تاسو ته تلاوت وکړم حال دا چې په تاسو نازل شوى دى ؟! ، رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام راته وفرمايل: زه دا خوښوم چې د بل نه قرآن کريم واورم، عبد الله بن مسعود وايي: ما د سورة النساء تلاوت شروع کړ کله چې دې آيت (فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا) ته ورسېدم، رسول الله عليه الصلاة والسلام راته وفرمايل: بس کړه د رواى شک دى چى يا يې وفرمايل: نور مه وايه. عبد الله بن مسعود رضى الله عنه وايي: ما رسول الله عليه الصلاة والسلام وليده، چې د د مبارکو سترګو نه يې اوښکې روانې وې.

**دحديث تخريج:**

بخاري واللفظ له : كتاب فضائل القرآن ،باب : البكاء عند قراءة القرآن ،حديث : ( ۵۰۵۵) او ( ۵۰۵۶).
او همداسى بخاري په كتاب التفسير ،باب : فكيف اذا جئنا من كل أمة بشهيد وجئنا بک على هؤلآء شهيدا (۴۵۸۲).
مسلم : كتاب فضائل القرآن ومايتعلق بها،باب : فضل استماع القرآن وطلب القراءة،حديث : ( ۸۰۰)
ابوداود : أول كتاب العلم،باب : فى القصص،حديث : ( ۳۶۶۸).
ترمذى :أبواب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم،باب : ومن سورة النساء،حديث : ( ۳۰۲۵)

**د حديث فائدې:**

۱: قرآن عظيم ډېر لوى تأثير لري انسان د قرآن له تلاوت نه ډېر متاثره کېږي.

۲: د انسان نفس تغيير ته ضرورت لري، ځکه خو رسول الله عليه الصلاة والسلام قرآن کريم لوسته او اوريده.

۳: تر ټولو نه ښه کار دا دى، چې انسان د قرآن کريم تلاوت په ډېره چوپتيا او فکر سره وکړي.

۴: قرآن کريم د زړه په مينه لوستل د انسان زړه مطمئن او روح خوشحالوي.

**۸ : د صدقي فضيلت .**

**عن أَبِي هريرة ،عن النَّبِيِّ صلى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم ،قَالَ : " بينَا رجل بفَلَاة من الْأَرْض ،فَسَمع صوتًا في سحابة اسْق حديقَةَ فُلَان ،فَتَنحَّى ذَلكَ السَّحاب ،فَأَفْرغ ماءه في حَرَّة ،فَإِذَا شَرَجةٌ من تلْكَ الشِّراجِ قَدْ استوعبتْ ذَلكَ الْماء كُلَّهُ ،فَتَتَبَّع الْماء ،فَإِذَا رجل قَائمٌ في حديقَته يحوِّلُ الْماء بمسْحَاته ،فَقَالَ لَه : يا عبدَ الله ما اسمك ،قَالَ : فُلَانٌ للاسْم الَّذي سمع في السَّحَابة ،فَقَالَ لَه : يا عبدَ الله لم سأَلْتني عن اسمي ؟،فَقَالَ : إِنِّي سمعتُ صوتًا في السَّحاب الَّذي هذَا ماؤه ، يقُولُ : اسْق حديقَةَ فُلَان لاسمك فَما تَصنَع فيها ،قَالَ : أَمَّا إِذْقُلْتَ هذَا ،فَإِنِّي أَنْظُر إِلَى ما يخرج منْها فَأَتَصدَّقُ بثُلُثه ،و آكُلَ أَنَا وعيالي ثُلُثًا،و أَرُدُّ فيها ثُلُثَه .**

دَ ابَوَ هريرة رضی اللهَ عَنه نه روايت دَی چې وايي: رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل:
په صحراء کې يو کس و هغه د وريځو څخه يو اواز واورېده چې ويل يې: د فلاني سړي باغ ته اوبه ورکړه، وريځ يو خوا ته لاړه او د ځمکې په داسي ځای يې باران وکړ، چې هلته تيږې وې هلته د اوبو يوه وياله جوړه شوه او هغه د اوبو څخه ډکه شوه هغه کس د دغه اوبو پسې لاړ هغه په باغ کې يو سړی وليد، چې په خپله بېلچه باندې اوبه خپل باغ ته اړولې د هغه سړي نه يې وپوښتل ای د الله بنده ستا څه نوم دی؟! هغه ورته وويل: فلانی! هماغه نوم يې ورته واخيست کوم چې ده د وريځو څخه اوريدلی وه. باغ والا دده څخه پوښتنه وکړه: ای د الله بنده تا ولې زما د نوم پوښتنه وکړه؟ هغه ورته وويل: ما د وريځو څخه داسي غږ واورېده، چې دا اوبه دهغې وريځې دي، غږ وويل: د فلاني سړي باغ اوبه کړه، چې ستا نوم يې واخيست او بيا يې دباغ والا نه پوښتنه وکړه:
ته په خپل باغ کې څه کوې؟ باغ والا ورته وويل: دا چې تا دا راته وويل(زما د معمول پوښتنه دې رانه وکړه نو واوره). زه د باغ تر حاصله پورې انتظار کوم يوه حصه به يې خيرات (صدقه) کړم يوه يې زه او زما کورنی وخورو او يوه حصه به يې بېرته په باغ کې ولګوم.

**دحديث تخريج:**

مسلم:کتاب الزهد و الرقائق، باب الصدقة فی المساکين، حديث:( ۲۹۸۴)

**د حديث فائدې:**

۱: کرامت د الله عزوجل فضل دی هغه عزوجل په کراماتو سره انسانانو ته خپل قدرت او رحمت ورښيي لکه څنګه چې په دغه حديث کې يو سړی په وريځو کې غږ واورېده.

۲: وريځې د الله عزوجل په حکم او امر باران کوي هېڅ بشر په دې نه پوهېږي، چې څنګه او چېرته باران کېدونکی دی. الله عزوجل فرمايلي:
**(إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ ۖ وَ مَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ۖ وَ مَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ) د لقمان سورت ۳۴ ايت .**
بېشکه يواځې الله عزوجل ته د قيامت د ورځې او د باران د نازلېدلو (کېدلو) علم دی او الله عزوجل ته هغه څه چې په ارحامو (د ښځو په رحم) کې وي معلوم دی او هېڅ نفس په دې نه پوهېږی، چې سبا به څه کار کوي او هېڅ نفس په دې نه پوهېږي، چې په کومه ځمکه به مري. بېشکه الله عزوجل ښه عالم او ښه خبر دی.
۳: کله چې کوم کس ته دبل انسان نوم نه وي معلوم، نو هغه ته په کار دي چې هغه ته دعبدالله خطاب وکړي لکه څنګه چې په پورتني حديث کې راغلي، چې هغه ترينه پوښتنه وکړه ای عبدالله ستا نوم څه دی هغه ورته وويل فلانی.
۴: مسلمان سره دا نه ښايي، چې هغه خپل ښه کارونه، او عمل پټ کړي کوم چې نورو ته معلوم شوی وی او هغه ترينه دهغه په باره کې پوښتنه وکړي، لکه په حديث کې چې هغه ورته وويل چې ته په دې څه کوي؟
۵: په دې حديث کې دصدقې او احسان ذکر راغلی دی لکه هغه سړی چې بل ته وويل: دريمه برخه يې صدقه کوم.
٦: په دې حديث کې په ځان او په خپله کورنۍ دمصرف کولو فضيلت هم بيان شويدی لکه هغه سړی چې وايي: ددينه زه او زما کورنۍ هم خوراک کوو.
۷: رزق په هيله او اميد نه پيدا کېږي بلکې په عمل، خواري او محنت پيدا کېږي لکه په حديث کې چې هغه کس د بيلچې سره باغ ته اوبه ورکولې.

**۹ : په شکر ويستلو سره نعمتونه لا زياتيږی.**

**عن أَبي هريرَةَ رَضي اللهُ عنه أَنَّه سَمعَ رسولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم يقُولُ : إنَّ ثَلاثَةً في بَني إسْرائيل : أَبرص ،وأَقْرعَ ،وأَعْمى ،بدَا لله عَزَّ وجلَّ أَنْ يبْتَليهُمْ ،فَبعثَ إلَيْهِم ملَكًا ،فَأَتَى الْأَبرصَ ،فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحبُّ إلَيْكَ ؟قالَ: لَونٌ حسن و جلْدٌ حسنَ قَدْ قَذرني النَّاسَ ،قالَ: فَمسحه فَذَهب عَنْهَ ، فَأُعْطي لَونًا حسناَ وجلْدًا حسنا ،فَقَالَ: أَيُّ الْمَال أَحبُّ إلَيْكَ ؟قالَ: الْإبلُ أَو قَالَ: الْبقَر ،هو شَكَّ في ذَلكَ : إنَّ الْأَبرَص و الْأَقْرعَ قَالَ أَحدُهما : الإبلُ ، وقَالَ الْآخرَ: الْبقَر ؛ فَأُعْطي نَاقَةً عَشَراء ،فَقَالَ: يبارَكُ لَكَ فيهَا ،وأَتَى الْأَقْرعَ فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحبُّ إلَيْكَ ؟قالَ: شَعر حسن وَيذْهَب**

هٰذَا عَنِّي قَدْ قَذِرَنِي النَّاس ،قَالَ: فَمسحه فَذَهب ، وَأُعْطِي شَعرا حسنا ، قَالَ: فَأَيُّ الْمَال أَحبُّ إِلَيْكَ ؟قَالَ: الْبقَرَ. قَالَ: فَأَعْطَاهَ بقَرةً حَاملًا ،وقَالَ: يبارِكُ لَك فِيهَا ،وأَتى الْأَعْمى ،فَقَالَ: أَيُّ شيْء أَحبُّ إِلَيْكَ ؟قَالَ: يردُّ اللّٰه إِلَيَّ بصَري فَأُبْصِر به النَّاس ،قَالَ: فَمَسحه فَردَّ اللّٰه إِلَيْه بصرهَ ،قَالَ: فَأَيُّ الْمَال أَحبُّ إِلَيْك ؟ قَالَ: الْغنَم ،فَأَعطَاه شَاةً والدًا ،فَأُنْتِجَ هذَان وولَّد هذَا ،فكَانَ لهٰذَا وَاد من إبل ،و لهٰذَا واد من بقَر ،ولهٰذَا واد من غنَم ،ثُمَّ إِنَّه أَتَى الْأَبرص في صُورته وهيْئته ،فقَالَ: رجلٌ مسْكين ،تقَطَّعتْ بيَ الْحبالُ في سفرِيَ ،فَلَا بلَاغَ الْيوم إِلَّا باللّٰه ،ثُمَّ بك ،أَسأَلُكَ بالّذي أَعطَاكَ اللَّوْنَ الْحسن والْجلْدَ الْحسن والْمالَ بعيرا ؛أَتبلَّغُ علَيْه في سفَري ،فَقَالَ لَه : إِنَّ الْحقُوق كَثيرةٌ ،فقَالَ لَه: كَأَنِّي أَعْرِفُكَ ؛أَلَم تَكُن أَبرص يقْذَرك النَّاس ؟،فَقيرا فَأَعطَاكَ اللّٰه ؟،فَقَالَ: لَقَدْ ورثْت لكَابر عن كَابر ، فَقَالَ: إِنْ كُنْت كَاذبا فَصيَّرك اللّٰه إِلَى ما كُنْتَ ،وأَتَى الْأَقْرعَ في صُورَته و هيْئته ،فَقَالَ لَه مثْل مَا قَالَ لهٰذَا ،فَردَّ علَيْه مثْلَما ردَّ علَيْه هٰذَا ،فَقَالَ: إِنْ كُنْت كَاذبا فَصيَّرك اللّٰه إِلَى ما كُنْتَ ،وأَتى الْأَعْمَى في صُورَته فَقَالَ: رجل مسْكينٌ ،و ابن سبيل ،و تقَطَّعتْ بي الْحبالُ في سفري ، فَلَا بلَاغَ الْيوم إِلَّا باللّٰه ،ثُمَّ بك ،أَسأَلُك بالَّذي ردَّ علَيْك بصَرك شَاةً أَتبلَّغُ بها في سفَري ، فَقَالَ: قَدْ كُنْت أَعْمى فَردَّ اللّٰه بصرِي ،و فقيرا فَقَدْ أَغْنَاني ،فَخذْ ما شئْتَ ،فَو اللّٰه لَا أَجهدكَ الْيوم بشَيْء أَخذْتَه للّٰه ، فَقَالَ: أَمْسكْ مالَك ؛فَإِنَّما ابتليتُمْ فَقَدْ رضي اللّٰه عَنْك ،و سَخطَ علَى صَاحبيْك.

د ابو هرير ة رضَی الله عنه نَه روايتَ دی، چې وايي ما د رسول اللّٰه علیه افضلَ الصلاة والسلام نه واورېدل چې فرمايل يې:

په بني اسرائيلو کې درې کسان چې يو يې پيس (برص) بل گنجی او دريم ړوند وو. الله عزوجل د دوی د امتحان اراده وکړه. الله عزوجل دې دريو واړو ته يوه فرښته ور وليږله. فرښته پيس ( برگي) ته راغله او ورته يې وويل: ستا څه خوښېږي؟ پيس ورته ځواب ورکړ چې: ښائسته رنک او ښائسته پوستکی (څرمن) او دا زه چې په کوم حالت کې يم دا مرض زما څخه لرې شی، ځکه چې د دې له امله خلک زما څخه نفرت کوي. رسول الله عليه افضل الصلاة و السلام فرمايي: فرښتې د هغه په جسم لاس را کش کړ دهغه کس نه هغه مرض لرې شو او ښه رنگ او پوستکی پرې پيدا شو. د هغه نه بيا فرښتې وپوښتل: په مال کې دې څه خوښ دی؟ هغه ورته وويل: اوښ يا غوا (د رواي اسحاق بن عبدالله شک دی، پيس او گنجي دواړو کې يو اوښ غوښتی و او بل غوا). فرښتې هغه ته د لسو مياشتو حامله اوښه ورکړه او داسی دعايې ورته وکړه: الله دې درته په کې برکت واچوي. فرښته بيا گنجي ته ورغله او ورته يې وويل: ستا تر ټولو ډېر څه خوښ دی؟ هغه ورته وويل: ښائسته ويښته او چې دا مرض را څخه لرې شي، ځکه خلک ددې په وجه زما څخه نفرت کوي. رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام فرمايي: فرښتې د هغه په سر لاس راکش کړ . الله عزوجل هغه ته ويښته ورکړل او

هغه مرض يې ترينه لرې کړ. فرښتی بیا ترینه وپوښتل: په مال کې دې تر ټول ډېر څه خوښېږی؟ هغه ورته وویل: غوا. فرښتې هغه ته حامله غوا ورکړه او داسې دعا يې ورته وکړه : الله دې درته په کې برکت واچوی. فرښته بیا ړوند ته ورغله او ورته يې وویل: تر ټولو ډېر ستا څه خوښ دي؟ ړوند ورته وویل: دا چې الله عزوجل ماته بېرته د لیدلو طاقت راکړي تر څو زه خلک ووینم. رسول الله علیه الصلاة والسلام فرمايي: فرښتې د هغه په سترګو لاس راکش کړ او الله عزوجل د هغه سترګې بېرته بیناء کړې. فرښتی ترینه بیا وپوښتل: په مال کې دې تر ټولو ډېر څه خوښ دي؟. هغه ورته وویل: میږه (ګډه). فرښتی هغه ته حامله میږه ورکړه او داسې دعا يې ورته وکړه. الله دې درته په کې برکت واچوی.

دریو واړو څناورو بچي وزېږول او د برګي د اوښانو خپله ګله (رمه) شوه. همداسی د ګنجي د غواګانو او د ړوند د اوزو رمه شوه .

فرښته د برګي (پیس) مرض والا ته بیا په هماغه شکل راغله لکه څنګه چې مخکې ورته راغلې وه او ورته يې وویل:

زه یو ډېر محتاج انسان یم په سفر کې زما ټول سامان او اسباب خلاص شو د الله عزوجل د مدد نه بغیر زه خپل منزل ته نه شم رسیدلی، زه ستا نه د هغه الله په نوم سوال کوم ،کوم الله چې تاته ښه رنګ او ښائسته پوستکی درکړ او د اوښانو دغه رمه يې درکړې ده، د هغه په نوم یو اوښ راکړه تر څو زه پری خپل سفر سرته ورسوم. هغه(پیس) ورته وویل: په ما حقوق ډېر زیات دي. فرښتې ورته وویل: غالباً زه تا پېژنم. آیا ته هغه غریب او پیس نه وې؟، چې خلکو در څخه نفرت کاوه. الله صحت او دغه مال درکړ؟. هغه کس ورته وویل: دا مال ماته زما د پلار او نیکه نه را پاتې شوی دی. فرښتې ورته وویل: که چېرته ته دروغجن يې، نو الله عزوجل دې خپل اولني حالت ته ور وګرځوه.

فرښته بیا ګنجي ته هم په هماغه پخواني صورت کې راغله او هماغه څه يې ورته و ویل کوم يې چې د پیس مرض وهلي ته ویلي و. ګنجي فرښتې ته هماغسې ځواب ورکړ کوم چې پیس ورکړی و. فرښتې ګنجي ته وویل:

که ته دروغجن يې نو الله دې هماغه اولني حالت ته ور وګرځوه. فرښته بیا ړوند ته په هماغه اولني صورت راغله او ورته يې وویل:

زه یو حاجتمند مسافر یم په سفر کې زما ټول اسباب خلاص شوی دی. د الله عزوجل د مرستې او بیا ستا له مرستي نه بغیر زه خپل منزل ته نه شم رسېدلی. زه درنه د هغه الله په نوم سوال کوم، کوم چې تاته سترګې درکړي د هغه په نوم یوه میږه راکړه تر څو زما په سفر کې په کار راشی؟! ړوند ورته وویل: بیشکه زه یو ړوند وم الله عزوجل په خپل کرم سترګې راکړې او غریب وم په خپل رحم يې مالداره کړم. قسم د هغه په ذات! نن چې ته د هغه په لاره هر څه غواړې او اخلې زه به تا د هغی له اخیستلو څخه

منع نه کړم. فرښتې ورته وويل: ته خپل مال د ځانه سره وساته. تاسو درې واړه الله امتحان کړی. الله عزوجل ستا څخه رضا شو او ستا دواړو ملګرو ته غصه او دهغوی څخه ناراضه دی.

**دحديث تخريج :**

صحيح البخاري: كتاب أحاديث الأنبياء، باب: حديث أبرصوأعمى و أقرع في بني إسرائيل،برقم: (۳۴۶۴)او په: كتاب الايمان والنذور، باب: لايقول ماشاء الله و شئت، وهل يقول أنا بالله ثم بک ؟ ۶۶۵۳.
صحيح مسلم: كتاب الزهد (والرقائق) باب: الدنيا سجن الؤمن وجنة للكافر، حديث: (۲۹۶۴).

**د حديث فائدی:**

۱: د غريبو او مسکينانو سره مرسته کول د مسلمان د ښو صفتونو نه يو ښه صفت دی.

۲: الله عزوجل په خلکو امتحان راولي.

۳: څوک چې بل ته هديه يا بل څه ورکوي، نو دعا دې ورته کوي لکه فرښتې چې هغوی ته د مال د ورکولو نه وروسته کوله.

۴: د الله عزوجل په نعمتونو شکر نه ويستل د نعمت د زوال سبب ګرځي.

۵: د الله په نعمتونو شکر ويستل په نعمت کې زياتوالی پيدا کوي، الله عزوجل فرمايلي:

(وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ ۝) ، سورة ابراهيم ۷ ايت .

او ياد کړه هغه وخت چې ستاسو رب تاسو ته خبر درکړ، که چيرته تاسو شکر و ويست (په تېرو نعمتونو او احسانونو) نو تاسو ته به نعمت زيات کړم او که تاسو نا شکري او بې قدري مو وکړه، نو بې له شکه زما عذاب ډېر سخت دی.

٦: په هر انسان واجب دی، چې د خپل ځان د جوړښت له امله د الله عزوجل شکر اداء کړی.

**۱۰ : هر ژوندی ژي (ځناور) سره په نيکی کولو کی اجر دی .**

**عَن أَبِي هريرَةَ رَضي اللهُ عنهُ ، أَنَّ النَّبِيَّ صلَى اللهُ علَيْه وسَلَّم ، قَالَ:**
**بينما رجل يمشي بطَريق ، اشْتدَّ علَيْه الْعطَش , فوجدَ بئرًا , فَنزلَ فيها ، فَشَرب ، ثُمَّ خرج ، فإذا كَلْب يلْهثُ ، يَأْكُلَ الثَّرى منْ الْعطَشَ ، فقَال الرَّجل : لَقَدْ بلَغَ هذَا الْكَلْب منْ الْعطَش مثْلُ الَّذي كَانَ بلغَ منِّي ، فَنزلَ الْبئر، فملأَ خفَّهماء ، ثُمَّ أَمسكَه بفيه ، حتَّى رَقي ، فسَقى الْكَلْبَ ، فشَكر**

**اللهُ لَهَ ، فَغفَر لَهَ ، قَالُوا : يارسولَ الله ، وَإنَّ لَنا في هَذه الْبَهَائم لَأَجْرا ؟فَقَالَ: في كُلِّ كَبد رَطْبَة أَجر .**

د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دی وايي: رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:
يو سړی په لاره روان و سختې تندې واخيست په لاره کې يې يوه څاه وليدله هغې ته ور کوز شو او اوبه يې وڅکلې او د څاه څخه را وخوت. د څاه په غاړه يې يو سپی وليده، چې ژبه يې را ايستلې وه او د ډېرې تندې له لاسه يې لمده خاوره خوړله، سړي د ځانه سره وويل: دا سپی هم داسې تندې اخيتسی لکه زه يې چې اخيستی وم. څاه ته کوز شو خپله موزه يې له اوبو ډکه کړه او له څاه څخه په داسی حال کې را و ووت، چې هغه خپله موزه په خوله کې نيولې وه او سپي ته يې اوبه ورکړې. الله د هغه کس دغه کار خوښ شو او هغه ته يې ښښنه وکړه. صحابو رضی الله عنهم عرض وکړ: ای د الله رسوله ! د ځناورو سره په نيکې کولو کې هم موږ ته ثواب او اجر شته؟! رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل: په هر لامده جګر لرونکې کې ثواب شته دی (هر ژوندی شي کې).

**دحديث تخريج:**

بخاری : کتاب المساقاة ،باب : فضل سقي الماء،حديث : ( ۲۳۶۳ ). اوپه کتاب المظالم،باب : الآبار التي على الطريق اذالم يتأذ بها (۲۴۶۶ ) اوبخاري په کتاب الادب،باب : رحمة الناس والبهائم (۶۰۰۹).
مسلم وللفظ له : کتاب السلام،باب : فضل سقي البهائم واطعامها،حديث : ( ۲۲۴۴).
ابوداود : کتاب الجهاد،باب : مايؤمر به من القيام على الدواب والبهائم (۲۵۵۰).

**دحديث فائدې:**

۱: کله چې په انسان سختي او مرض راشي هغه بيا د آسانی او روغ صحت په قدر پوهېږی.
۲: کله چې مسلمان کوم ښه او نېک کار کوي الله عزوجل د هغه دغه کار خوښوی.
۳: د ښه او نېک عمل په کولو سره الله عزوجل انسان ته مغفرت کوي.
۴: په حيواناتو رحم کول د الله عزوجل د رضاء سبب ګرځي.
۵: په هر ژوندي ژوي رحم کول اجر لري.

**۱۱ : هغه کوچنيان چی حق وينا يی کړی ده .**

**عن أَبي هَريرَةَ ،عَنِ النَّبيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم ،قَالَ: " لَم يَتَكَلَّمْ في الْمَهْد إلاّ ثَلاثَةٌ عيسَى ابن مريم ،و صَاحبُ جريجٍ ،وكَانَ جريج رجلاً عَابدًا ،فاتَّخَذَ صومعةً ،فكَانَ فيهَا ،فَأَتَتهُ أُمُّهُ و هو يُصلِّي ،فقَالَتْ: يا جريج فَقَالَ: يا ربِّ أُمِّي و صَلَاتي ،فَأَقْبل عَلَى صَلَاته ،فَانْصرفَتْ ،فَلَمَّا كَانَ منَ الْغد**

أَتَتْهُ و هو يُصَلِّي ، فَقَالَتْ : يا جريج فَقَالَ: يا ربِّ أُمِّي و صلَاتي ،فَأَقْبل عَلَى صلَاته ،فَانْصرفَتْ ،فَلَمَّا كَانَ منَ الْغَد أَتَتْهُ و هو يُصَلِّي فَقَالَتْ: يا جريج فَقَالَ: أَي ربِّ أُمِّي وصلَاتي ،فَأَقْبل عَلَى صلَاته ،فَقَالَتْ: اللهُمَّ لَا تُمتْهُ حَتَّى ينْظُر إِلَى وُجُوه الْمُومسات ،فَتذَاكر بنو إِسرائيل جريجا وعبادتهُ وَكَانَتَ امرأَةٌ بغيٌّ يتمثَّل بحُسْنها ،فَقَالَتْ: إِنْ شئْتُم لَأَفْتنَنَّهُ لَكُم ،قَالَ: فَتعرَّضَتْ لَه ،فَلَم يلْتفتْ إِلَيها ،فَأَتَتْ راعيا كَانَ يأْوي إِلَى صومعته ،فَأَمكَنَتْه منْ نَفْسها ،فَوقَع علَيها فَحملَتْ ،فَلَمَّا ولَدَتْ قَالَتْ: هو منْ جريجٍ ،فَأَتَوه فَاستنْزلُوه وهدموا صومعته وجعلُوا يضْربونَهُ فَقَالَ: ماشأْنُكُم ؟قَالُوا : زنَيت بهذه الْبغيِّ ،فَولَدَتْ منْكَ ،فَقَالَ: أَين الصَّبيُّ ؟فَجاءوا به ،فَقَالَ: دعُوني حَتَّى أُصلِّي ،فَصلَّى ،فَلَمَّا انْصرفَ أَتَى الصَّبيَّ فَطَعن في بطْنه ، وقَالَ: يا غُلَام من أَبوكَ ؟قَالَ: فُلَانٌ الرَّاعي ،قَالَ: فَأَقْبلُوا علَى جريجٍ يقَبِّلُونَه ويتمسَّحونَ به ، وقَالُوا: نَبْني لَكَ صومعتكَ منْ ذَهب ،قَالَ: لَا ،أَعيدُوها منْ طين كَما كَانَتْ ،فَفَعلُوا. وبينَا صبيٌّ يرضَع منْ أُمِّه ،فَمرَّ رجل راكبٌ علَى دابَّة فَارِهة ،وشارة حسنة ،فَقَالَتْ أُمُّه : اللهمَّ اجعلِ ابنْي مثْلَ هذَا ،فَترك الثَّدْي و أَقْبل إِلَيه ،فَنظَر إِلَيه ،فَقَالَ: اللهمَّ لَا تَجعلْني مثْلَهُ ،ثُمَّ أَقْبل علَى ثَدْيه فَجعلَ يرتَضعُ ". قَالَ: فَكَأَنِّي أَنْظُر إِلَى رسولِ الله صلَّى الله علَيه وسلَّم و هو يحكي ارتضَاعه بإِصبعه السَّبَّابة في فَمه ،فَجعل يمصُّها ،قَالَ: " ومرُّوا بجارِية وهم يضْربونَها ويقُولُونَ: زنَيت ،سرقْت ،وهي تقُولُ : حسبي الله ونعم الْوكيل ،فَقَالَتْ أُمُّه: اللهمَّ لَاتَجعلِ ابني مثْلَها ،فَترك الرَّضاع ونَظَر إِلَيها ،فَقَالَ: اللهمَّ اجعلْني مثْلَها ،فَهناكَ تراجعا الْحديثَ ،فَقَالَتْ: حلْقَى ! مر رجل حسن الْهيئَة فَقُلْت : اللهمَّ اجعلِ ابنِي مثْلَهُ ،فَقُلْتَ: اللهمَّ لَا تَجعلْني مثْلَهُ ،ومرُّوا بهذه الْأَمة وهم يضْربونَها ويقُولُونَ : زنَيت ، سرقْت ،فَقُلْت : اللهمَّ لَا تَجعلِ ابني مثْلَها فَقُلْت: اَللهمَّ اجعلْني مثْلَها ،قَالَ: إِنَّ ذَاكَ الرَّجلَ كَانَ جبَّارا ،فَقُلْت: اللهمَّ لَا تَجعلْني مثْلَهُ ،وإِنَّ هذه يقُولُونَ لَها زنَيت ولَم تَزْنِ ،و سرقْت ولَم تَسرِقْ فَقُلْت : اللهمَّ اجعلْني مثْلَه .

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چې وايي: رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل:
په وړوکوالي (د غېږې ماشوم) کې بغير د دريو کسانو نه نورو خبرې نه دي کړي. يو عيسٰی عليه السلام و او بل (دويم ماشوم) د جريج ماشوم (جريج يو عابد و) هغه يو عبادت ځای جوړ کړی و، چې په هغه کې به يې عبادت کاوه، يوه ورځ هغه عبادت کاوه، چې مور يې راغله او ورته يې نارې کړې، چې ای جريجه! جريج د ځانه سره وويل: ای ربه! زما مور او لمونځ ( زما مور ماته نارې وهي او زه ستا عبادت کوم). جريج خپل عبادت ته مخه کړه، مور يې لاړه په سبا يې بيا مور راغله او ورته يې نارې کړې، چې ای جريجه! جريج وويل: ای ربه زما لمونځ او زما مور . جريج بيا خپل عبادت ته مخه کړه.

په دریمه ورځ یې مور بیا راغله او ورته یې نارې کړې، ای جریجه! جریج وویل: یاالله زما مور او زما لمونځ ( یوې خوا راته مور نارې وهي او د بلې خوا زه ستا عبادت کوم) . جریج بیا خپل عبادت ته مخه کړه. د جریج مور جریج ته داسی ښېرا وکړه: یاالله تر هغې جریج مه مړ کوې تر کومه چې هغه د بد کاره (زناءکارو) ښځو مخونه ونه ویني؟!
په بني اسرائیلو کې د جریج او د جریج د عبادت په باره کې خلکو ډېرې خبرې کولې او د هغه صفتونه به یې کول. په بني اسرائیلو کې یوه ښائسته او بد کاره ښځه هم اوسیدله، چې د هغې د ښائست په ټولو کې ضرب المثل درلود. هغی وویل: که تاسو غواړی زه به جریج په فتنه کې راگیر کړم. هغه جریج ته ورغله (تر څو هغه په فتنه کې را گیر کړي)، مگر جریج هغې ته هېڅ اهمیت ور نه کړ . آخر هغه ښځه یوه شپون ته ورغله، چې د جریج دعبادت ځای سره څنگ ته اوسېده. هغې ښځې دغه شپون ته د بد کارۍ بلنه ورکړه او هغه د دې بلنه ومنله. هغه ښځه د شپون نه حامله شوه، کله چې یې ماشوم پیدا شو خلکو ته یې وویل : دا د جریج ماشوم دی. خلکو چې دا واورېدل د جریج عبادت ځای ته ورغلل. جریج یې له عبادت ځای څخه را وویست د هغه عبادت خانه یې ورانه کړه او د هغه په وهلو یې شروع وکړه. جریج ترینه و پوښتل: څه خبره ده ؟  خلکو ورته وویل: تا له دې بدکارې ښځې سره زنا کړې ده او له هغې نه یو ماشوم هم لري. جریج ورته وویل: ماشوم چېرته دی؟ خلکو ورته ماشوم راوست. جریج وویل: اجازه راکړئ چې لمونځ وکړم. لمونځ یې چې وکړ ماشوم ته ورغی او په خیټه کې یې په گوته و واهه او ورته یې وویل: ای ماشومه! ستا پلار څوک دی؟! ماشوم ورته وویل : فلانکی شپون. کله چې خلکو د ماشوم دغه خبرې واورېدې په منډه جریج ته راغلل د هغه په ښکولولو یې شروع وکړه او ورته یې وویل: مونږ به تاته د سرو زرو نه د عبادت خونه جوړه کړو. جریج ورته وویل: نه! بلکې د ختې نه یې جوړ کړی او خلکو ورته هماغسې عبادت ځای جوړ کړ لکه څنکه چې مخکې و.
او یو بل (دریم ماشوم) چې د مور شیدې یې رودلې په دې وخت کې یو کس چې په یوه ښه سپرلې سور او ښائسته کالی یې اغوستی ول تېر شو ددغه هلک مور الله ته دعا وکړه چې : یاالله زما ځوی هم داسې کړه (لکه په آس سپور ځوان)،کله چې ماشوم د مور دا دعا واورېده د مور د سینې رودل یې پرېښودل او ویې ویل: یاالله ما داسې مه کوه  او بیا یې د مور د سینې په رودلو شروع وکړه.
ابو هریرة رضی الله عنه فرمایي: ما رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام ولیده، چی خپله مبارکه گوته یې رودله، بیا رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام وفرمایل: بیا خلکو یوه انجلۍ نیولې وه او هغه یې وهله او ورته یې ویل: چې تا زنا کړی ده، تا غلا کړی ده او هغه انجلۍ ویلې : الله عزوجل زما لپاره کافي دی او هغه زما غوره وکیل دی. د دغه هلک مور چې کله دغه حالت ولیده الله عزوجل ته یې دعا وکړه، چې یاالله زما ځوی داسې مه لوی یه وې. هغه ماشوم د مور سینه پرېښوده هغې جلې ته یې وکتل او داسې دعا یې وکړه: یاالله ما همداسې لوی کړې. مور یې (دغه ماشوم) ځوی ته وویل:

عجيبه ده! يو ښائسته (په مالي لحاظ پوره) كس تېر شو. ما د الله نه دعا وكړه، چې يا الله زما ځوى هم داسې لوى كړې تا وويل: ياالله ما داسې مه لوى يه وې او يوه انجلۍ چې خلكو وهله او ورته يې ويل: چې تا غلا او زنا كړې ما دعا وكړه، يا الله زما ځوى داسې مه لويوه، نو تا وويل: چې ياالله ما داسې لوى كړه. ځوى يې ورته و ويل:

كوم كس چې تېر شو هغه يو ظالم سړى وه، نو ما وويل: ياالله ما داسې مه لويوه او كومه انجلۍ چې خلكو وهله او ورته يې ويل: تا زنا او غلا كړې، حال دا چې هغې خو نه زنا كړى وه او نه غلا، نو ما وويل: ياالله ما داسې لوى كړې.

**دحديث تخريج:**

بخاري : كتاب أحاديث الأنبياء ،باب : قوله تعالى : واذكر في الكتب مريم اذ انتبذت من أهلها،حديث (۳۴۳۶) او (۳۴۶۶) او په ابواب العمل في الصلاة ، باب : اذ ا دعت الأم ولدها في الصلاة (۱۲۰۶) او په كتاب المظالم ، باب : اذا هدم حائطا فليبن مثله (۲۴۸۲).

مسلم واللفظ له : كتاب البر والصلة والأدب ،باب : تقديم بر الوالدين على التطوع بصلاة،وغيرها،حديث : ( ۲۵۵۰).

**د حديث فائدې:**

۱: د مور او پلار غږ ته په وخت ځواب وركول د نفلي لمونځ او نفلي روژې نه افضل دى.

۲: مور او پلار ته نه دي پكار، چې بچيو ته ښېرا وكړي لكه څنگه چې د جريج مور خپل ځوى ته ښېرا كړې وې او هغه ورته قبولې شوې.

۳: د مور او پلار ښېرا زر قبلېږى لكه جريج ته چې قبولې شوې.

۴: مور او پلار ته پكار دي، چې خپلو بچيو ته ښه دعا وكړي.

۵: د شيطان او مفسدو خلكو دښمني د ښو خلكو سره په هر وخت او دايمي وي.

٦: ښائست كله نا كله د فتنې سبب گرځي لكه هغه ښځه چې ښائسته وه.

۷: مؤمن ته پكار دي، چې گناهونو نه په ډېر احتياط سره ځان وساتي لكه جريج ته چې هغه ښځې غږ وكړ او هغه ورته هېڅ اهميت هم ور نه كړ او نه يې ورته ځواب وركړ.

۸: د شيطان او مفسدينو پلانونه كله نا كله ډېر اوږده او وخت نيونكې وي لكه په دې حديث كې چې كله هغه ښځې جريج ته غږ وكړ هغه ځواب ور نه كړ او هغه بيا هغه شپون ته لاړه او نهه مياشتى وروسته يې ماشوم وزيږاوه او بيا يې وويل دا د جريج ماشوم دى.

۹: پلټنه او څېړنه د مؤمنانو له صفتونو څخه يو صفت دى، څكه الله عزوجل فرمايلى:

**(يَا أَيُّهَاالَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَأٍ فَتَبَيَّنُوا أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَى مَافَعَلْتُمْ نَادِمِينَ)**

د حجرات سورت ٦ ایت.

۱۱: په حدیث کې خلکو د دې پر ځای چې د جریج نه پوښتنه وکړي د هغه په وهلو شروع وکړه او عبادت ځای یې ورته وران کړ.

۱۰: الله عزوجل د مظلوم دعا قبلوي. په پورتني حدیث کې مو ولوستل چې جریج مظلوم و او کله یې چې دعا وکړه ماشوم پرې شاهدي ورکړه.

۱۱: د صالحو او نېکو خلکو کرامات حق دي لکه د جریج قصه مو چې ولوستله چې د غیبرې ماشوم خبرې وکړې.

۱۲: د الله عزوجل نه ویره کول او تل د ځان محاسبه د مسلمان د کامیابی او خلاصون لاره ده. الله عزوجل فرمایلی:

(وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ) د طلاق سورت .

۱۳: د دینا د خوند او مزو نه ځان سانته د متقي مؤمن شېوه ده.

۱۴: په ظلم، حرامه او ناپاکه لاره پیسې پیدا کول د انسان د تباهی سبب ګرځي لکه څنګه چې په قارون باندې الله عزوجل ځمکه سر چپه کړه. او په دې حدیث کې چې هغه ماشوم د مور د دعا نه وروسته وویل: یاالله ما د دې سړي غوندې مه لویوه.

۱۵: په پاک لمنو مسلمانو ښځو باندی تهمت د ستر ګناهونو څخه یوه ده او الله عزوجل د مظلومانو مرستندوی دی لکه په دې حدیث کې چې هغه ماشوم د مور د دعا نه وروسته وویل یاالله ما داسې لوی کړه لکه دا جلی.

**۱۲ : د هر ژوندي پای مرګ دی .**

**عن أَبو هريرةَ عن رَسُول الله صلى الله عليه وسلم قَالَ رسولُ الله صلى الله عليه وسلم :**
**جاء ملَكُ الْمَوْت إِلَى مُوسى عَلَيْه السَّلاَم ، فَقَالَ لَهَ : أَجبْ ربَّكَ ،– قَالَ – فَلَطَم موسى عَلَيْه السَّلاَم عين مَلَكَ الْمَوْت فَفَقَأَهَا – قَالَ : – فرجع الْملَكُ إِلَى الله تعالَى ، فَقَالَ : إِنَّكَ أَرْسَلْتَنى إِلَى عَبْد لَكَ لاَ يريدُ الْموتَ ، و قَدْ فَقَأَ عَيْنِي – قَالَ – فَردَّ اللهُ إِلَيْه عينه وقَالَ : ارْجعْ إِلَى عَبْدى فَقُل : الْحياةَ تُريدُ ؟ فَإِنْ كُنْتَ تُريدُ الْحياةَ فَضَع يدَكَ عَلَى متْنِ ثَوْر ، فَما تَوارتْ يدُكَ مِنْ شَعْرة ، فَإِنَّكَ تَعيشُ بِهَا سَنَةً ، قَالَ ثُمَّ مَهْ ؟ قَالَ : ثُمَّ تَموتَ . قَالَ : فَالآنَ مِنْ قَرِيب ، ربِّ ! أَمِتْنِى من الأَرْضِ**

**الْمقَدَّسَة ، رمْيةً بحَجَر . قَالَ رسولُ الله صلى الله عليه وسلم : وَالله لَو أَنِّي عنْدَهُ لأَريْتَكُم قَبرهَ إلَى جانب الَطَّرِيق ،عنْدَ الْكَثِيب الأَحمر.**

د ابو هريرة رضى الله عنه روايت دى چې وايي: رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:
ملک الموت (دمرگ فرښته) موسٰى عليه السلام ته راغى او ورته يې وويل: خپل رب ته ځواب ورکړه او حاضر شه . موسٰى عليه السلام ملک الموت په داسې څپېړه وواهه چې سترگه يې ورته وويستله. ملک الموت بېرته د الله عزوجل دربار ته راغى او ورته يې عرض وکړ: ياالله زه تا داسې يو بنده ته ور وليږم، چې هغه مرگ نه خوښوي او هغه زما سترگه وويستله. الله عزوجل د هغه سترگه روغه کړه او ورته يې وويل: زما بنده ته بېرته ورشه او ورته ووايه، چې که ژوند غواړې، نو د غويي په ملا لاس کېږده چې ستا دلاس لاندې څومره ويښته راشي د هغه هر ويښته په بدل کې به هغه يو کال ژوندى وى (ملک الموت بېرته موسى عليه السلام ته راغى او موسى عليه السلام ته يې دغه خبره وکړه ) موسى عليه السلام وويل: د دې نه وروسته به بيا څه وي؟ ورته وويل شول: بيا به مړ کېږى. موسٰى عليه السلام وويل: مرگ بيا اوس ښه دى. اى زما ربه ما د دې پاکې خاورې نه د يوې تيږې د وېشتلو په اندازه ليرې مړ کړه.
ابو هريرة رضى الله عنه وايي: بيا رسول الله عيه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:
په الله قسم که زه هلته وم، نو ما به تاسو ته د موسى عليه الصلا والسلام قبر ښودلى و، چې د لارې په غاړه د سرو شکو ډيرى ( وړه غونډۍ) سره دى.

**دحديث تخريج:**

بخارى : كتاب أحاديث الانبياء ،باب : وفاة موسى وذكره بعد ( ٣٤٠٧) اوپه كتاب الجنائز ،باب : من أحب الدفن في الأرض المقدسة ونحوها،(١٣٣٩) .
مسلم وهذا لفظه : كتاب الفضائل،باب : من فضائل موسى عليه السلام، (٢٣٧٢) .
سنن النسائي،كتاب الجنائز،باب : في التعزية . معجم نوع آخر، (٢٠٩١).

**د حديث فائدې:**

١: ملک الموت د انسانانو چې انبياء عليه السلام هم په کې راځي د هغوى د روح اخيستلو باندې مقرر شوي دي.
٢: ملايکې د انسان په شکل هم را تللاى شي لکه په دې حديث کې چې ملک الموت موسٰى عليه السلام ته راغى او موسى عليه السلام د هغه سترگه په څپېړه وويسته.
٣: وايي چې ملک الموت د موسى عليه السلام امتحان ته راغلى و نه د هغه د روح د اخيستلو لپاره.

۴: داسې هم ویل کېږي چې ملک الموت د هغه د امتحان لپاره نه و راغلی، بلکې موسی علیه السلام ملک الموت نه پېژانده لکه څنګه چې ابراهیم او لوط علیهما السلام هغه ملایکې نه پېژندلې چې د انسان په شکل ورته راغلې وې. ابراهیم علیه السلام هغه فرښتو ته چې د انسانانو په شکل راغلې وې هغوی ته یې ډوډۍ وړاندی کړه، چې هغوی ورته وویل مونږ ډوډۍ نه خورو او لوط علیه السلام ته چې کومې فرښتې راغلې وې، نو د ښائسته ځوانانو په شکل راغلې وې، چې هغه پرې وډار شو هسې نه د هغه قوم ورته په بده ونه ګوری.

۵: الله عزوجل په هر څه قادر دی، چې د څه شي اراده وکړي هغه کېږی.

٦: د ملک الموت بېرته د سمې او سالمې سترګې سره راتګ موسی علیه السلام په دې یقیني کړ، چې هغه فرښته ده او د ده د روح اخیستلو لپاره راغلی دی.

۷: مرګ حقیقت دی او هېڅوک ترینه خوندي نه دی که چېرته یو انسان د غویي د وېښتو په اندازه هم ژوند وکړی بیا به هم مړ کېږی.

۸: په غیبو صرف او صرف الله عزوجل خبر دی. د غیبو باره کې نه کوم پیغمبر پوهېږی نه فرښته او نه کوم بل انسان، څکه ملک الموت چې موسٰی علیه السلام ته ورغلی و، نو هغه داسې فکر کاوه چې هغه به یې په همدې اول وار کې ساه واخلې.

۹: په مقدسو ځایونو کې مرګ فضیلت لري لکه موسٰی علیه السلام چې دعا کړې وه. د عبدالله بن عمر نه یو مرفوع حدیث روایت دی، چې رسول الله علیه السلام دمدینې باره کې و فرمایل:

**( مَن اسْتَطَاعَ أَنْ يمُوتَ بِالْمَدِينَةِ فَلْيَمُتْ بِهَا ،فَإِنيِّ أَشْفَعُ لِمَنْ يمُوتُ بِهَا).**

ژباړه: که څوک د دې وس لري چې په مدینه کې مړ شي، نو هلته دې مړ شي. زه د هغه چا شفاعت کوم چې مدینه کې مړ شوی وي.

جامع الترمذی: ابواب المناقب، باب: ما جاء فی فضل المدینة (۳۹۱۷)
ابن ماجة: ابواب المناسک- باب فضل المدینة (۳۱۱۲) .

**۱۳ : په سختیو پسې اساني وی .**

**عن أبي هريرة – رضي الله عنه – قال: كَانَتْ بنَو إسْرَائيل يغْتَسلُونَ عَراةً ينْظُر بعْضَهم إلَى بعْض ، وكَانَ موسى يغْتَسلُ وحدَه ، فَقَالُوا: والله ما يمنع موسَى أَنْ يغْتَسل معنا إلا أَنَّه آدر ،فَذَهب مرَّةً يغْتَسلُ فَوضَع ثَوبه علَى حَجر ، ففَرَّ الْحَجر بثوبه ، فجمع موسَى في إثْره يقُولُ: ثَوْبي ياحجر! ثَوبيَ يا حجر! حتَّى نظَرت بنَو إسْرَائيل إلَى موسَىَ فقَالُوا : والله ما بموسَى منْ بأْس ، و أخَذَ ثَوبه فطَفق بالْحَجرِ ضرباً ؟فقَالَ أبو هَريرةَ : والله انهُ لَندَب بالْحجر ستَّةٌ أَو سبعةٌ ضربا بالحَجرِ.**

د ابو هريرة رضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل:
بني اسرائيلو به لوڅ لمبل او يو بل ته به يې کتل موسی عليه الصلاة والسلام به ځانته لمبل. بني اسرائيلو وويل: په خدای قسم چې موسی ځکه زمونږ سره نه لامبي چې هغه داسې مرض لري( د هغه خصيتين پړسيدلی)، چې زمونږ څخه يې پټوی. يوه ورځ موسٰی عليه السلام يواخې لمبل خپل کالي يې په يوه تېره کېښودل. تيږې ( د الله په حکم) د موسی عليه السلام کالي و تښتول. موسی عليه السلام د تيږي پسې منډه کړه او ورته يې وويل: ای تيږې! زما کالي. ای تيږی! زما کالي. په دې وخت کې بني اسرائيلو موسی عليه السلام لوڅ وليد، نو په خپلو کې يې سره وويل: قسم په رب ! موسی عليه السلام خو هېڅ داسې مرض نه لري. موسی عليه السلام د تيږې څخه کالي واخيستل او د تيږې په وهلو يې شروع وکړه. ابو هريرة رضی الله عنه وايې: قسم په خدای په هغه تيږه د موسی عليه السلام د وهلو شپږ اوه نښانونه پاتې دي.

**دحديث تخريج :**

بخاري و هذا لفظه : کتاب الغسل ،باب : من اغتسل عريانا وحده في الخلوة ،حديث : ( ٢٧٨) او په کتاب : أحاديث الأنبياء ، باب :( ٣۴٠۴) اوپه کتاب التفسير،باب : لاتکون کالذينءاذوا موسی،( ۴٧٩٩). مسلم : کتاب الحيض ،باب : جواز الاغتسال عريانا في الخلوة،حديث :( ٣٣٩).

**د حديث فائدې:**

١: د بني اسرائيلو سر کشي او په گناهونو کې ډوبېدل تر دې حده رسيدلي وو، چې د يو بل په مخکې به يې لوڅ لمبل او د يو بل شرمگاه ته به يې کتل.
٢: موسی عليه السلام د الله عزوجل نه ډېره حيا کوله .
٣: بد گمان او شک د مريضو او خرابو زړونو لرونکو خلکو کار وي لکه څنگه چې په دې حديث کې بني اسرائيلو بعضې بد گمانه کسانو وويل: موسی عليه السلام چې زمونږ سره نه لامبي، نو د هغه په وجود کې به خامخا داسي کوم مرض وي، چې هغه يې زمونږ نه پټوی او همداسې د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دی چې:
**قَسم رسولُ الله صَلی اللهُ عَلَيْه وسَلَم قَسما ،فَقَالَ رَجُلٌ : إنَّهَا لَقسْمَةٌ ما أُريدَ بهَا وجْهُ الله ،قَالَ : فَأَتَيتَا لنَّبيَّ صَلی اللهُ عَلَيْه وسَلَم فَساررتَهُ ،فَغَضَبَ منْ ذَلكَ غَضَبا شَديدًا وَ احمرَّ وجهه ،حَتَّی تَمنَّيتَ أَنّي لَم أَذْكُرهُ لَهَ ،قَالَ : ثُمَّ قَالَ : " قَدْ أَوُذيَ موسی بأَكْثَرَ منْ هَذَا فَصبر ..**
رسو الله عليَه السلاة َوالسلَام غنيمتونه تقسيمول. يو انصاري کس وويل: رسول الله عليه الصلام والسلام په دې تقسيم سره د الله عزوجل رضا و نه غوښته. عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وايي: زه رسول الله عليه السلام ته ورغلم او د هغه مبارک په غوږ کې مې ورته خبره وکړه. رسول الله عليه

السلام د هغه د دغه خبرې په باره کې ډېر سخت په قهر شو تر دې چې د هغه مبارک رنګ سور واوښت. ما دا ارمان وکړ چې کاش ما ورته هغه خبره نه وه ویلې. عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وايي: بیا رسول الله علیه افضل الصلام والسلام وفرمایل:

موسی علیه السلام د دې نه هم ډېر په تکلیف شوی دی، مګر هغه بیا هم صبر کړی و.

بخاري: کتاب الاستئذان ، باب ، اذا کانو أکثر من ثلاثة فلا بلس بالمسارة والمناجاة حدیث: (۶۲۹۱)
مسلم: کتاب الزکاة، باب: اعطاء المؤلفة قلوبهم علی الاسلام و تصبر من قوی ایمانه (۱۰۶۲)

۴: ګناهونه واړه ګڼل او د هغې پروا نه کول آخر د دې سبب ګرځي، چې انسان ته وړه ګناه بیا هېڅ هم نه ښکاري او دغسې انسان چې بیا هر څه کوي هغه ته خپل کار ښه او د شرعې مطابق ښکاري. الله عزوجل فرمايي:

**(أَفَمن زَيِّن لَهَ سوء عَمَله فَرآَه حسنا ۖ فَإِنَّ اللهَ يُضلُّ من يشَاء وَيَهْدي من يشَاء ۖ فَلَا تَذْهب نَفْسك عَلَيْهِمْ حَسَرَات ۚ إِنَّ اللهَ عَلِيمٌ بِمَا يصْنعونَ ) فاطر**

۵: اللهً عزوجل په َهر َڅه قادر دی لکه په دې حدیث کې چې تیرې منډه کړه او موسی علیه السلام کالي یې د ځانه سره و تېښتول.

٦: د بل انسان عورت ته په سترګو کتل که څه هم لویه ګناه ده، خو په ژبه د بل عورت په باره کې خبرې کول تر ټولو لویه ګناه ده. ځکه خو الله عزوجل د موسی علیه السلام عورت خلکو ته وښوده تر څو د خلکو د ژبې نه په امان کې شي. سترګې د یوه ځان پورې محدودې وي، خو ژبه بیا داسې نه وي.

۷: موسی علیه السلام چې تیره ووهله د دې مانا دا ده، چې موسی علیه السلام ډېر زیات حیا ناک و او همدا حال د ټولو نبیانو وو. د ابو سعید الخدري رضی الله عنه د رسول الله علیه السلام د حیا باره کې فرمایي:

**(كَانَ النَّبِيُّ صَلى اللهُ عَلَيْه وَسَلم أَشَدَّ حياء من الْعَذْراء في خدْرِهَا )**

رسول اَلله علیه الصلاَة والسلام د ځوَاني انجَلی ( چې هغه د واده په شپه په اول ځل خپل میړه وینی ) نه هم ډېر حیاء ناک وه .

بخاري واللفظ له: کتاب المناقب، باب: صفة النبي، حدیث: (۳۵۶۲)
مسلم: کتاب الفضائل، باب کثرة حیائه صلی الله علیه وسلم، حدیث: (۲۳۲۰)

۸: الله عزوجل چې موسی علیه السلام ته ډېري معجزې ورکړې وې لامل یې همدا و، چې بني اسرائیل په زړونو ډېر سخت او سر کشه وو. په تیږه باندې د موسی علیه السلام د وهلو نشان ځکه پاتی و تر څو بني اسرائیل د هغې معجزې په لیدلو ایمان راوړي او موسی علیه السلام د هغو د اذیت نه خوندی وي.

**۱۴ : اولاد د ژوند ښائست دی .**

**عن أَبِي هريرةَ ،قَالَ : قَالَ رسولُ اللَّه صَلَّى اللَّهُ علَيْه وسَلَّم : " لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ آدَمَ مسح ظَهْرَهُ فَسقَطَ منْ ظَهْره كُلُّ نَسمَة هو خَالقُهَا منْ ذُرِّيَّته إِلَى يوم الْقيامة ،وجعل بين عيني كُلِّ إِنْسان منْهم وبيصا منْ نور ،ثُمَّ عرضهمْ علَى آدم ،فَقَالَ : أَيْ ربِّ منْ هؤُلَاء ؟قَالَ : هؤُلَاء ذُرِّيَّتُك ،فَرأَى رجلًا منْهم فَأَعجبه وبِيص ما بين عينَيْه ،فَقَالَ : أَيْ ربِّ من هذَا ؟،فَقَالَ : هذَا رجلٌ منْ آخر الْأُممِ منْ ذُرِّيَّتك يقَالُ لَه : داود ،فَقَالَ : ربِّ كَم جعلْت عمره ؟،قَالَ : ستِّين سنَةً ،قَالَ : أَيْ ربِّ زِدْه منْ عمرِي أَرْبعين سنَةً ،فَلَمَّا قُضي عمر آدم جاءه ملَك الْموت ،فَقَالَ : أَولَم يبقَ منْ عمرِي أَربعونَ سنَةً ؟،قَالَ : أَولَم تُعطها ابنَك داود ،قَالَ : فَجحد آدم ،فَجحدتْ ذُرِّيَّته ،ونَسي آدم فَنَسيتْ ذُرِّيَّته ،وخَطئَ آدم فَخَطئَتْ ذُرِّيَّته ".**

د ابو هريرة رضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:
کله چې الله عزوجل آدم عليه السلام پيدا کړ د هغه په ملا يې لاس تېر کړ (بلاکيف) بيا د هغه د ملا څخه تر قيامته پورې د هغه د را روان نسل روحونه را ووتل او د هغو د سترګو ترمنځ يې د نور يوه رڼا کېښوده. بيا يې هغوی ټول د آدم عليه السلام مخ ته وړاندې کړل. آدم عليه السلام الله عزوجل ته عرض وکړ: دا څوک دي؟ الله عزوجل ورته وفرمايل: دا ستا اولاده ده. آدم عليه السلام په دغه کسانو کې يو کس وليد، چې د هغه د سترګو په منځ کې هغه د نور رڼا ډېره خوښه شوه عرض يې وکړ: يا الله دا څوک دی؟ الله عزوجل ورته وفرمايل: دا ستا د اولاد د آخري امت يو غړی دی، چې د هغه نوم داؤد دی. آدم عليه السلام بيا عرض وکړ: يا الله د ده عمر څو کاله دی؟ الله عزوجل وفرمايل: شپېته کاله. آدم عليه السلام عرض وکړ: ياالله زما د عمر نه څلوېښت کاله ده ته ورکړه! کله چې د آدم عليه السلام عمر پوره شو، نو د مرګ فرښته ورته راغله. آدم عليه السلام ورته ووېل: آيا زما د عمر څلوېښت کاله نه دي پاتې؟! فرښتې ورته ووېل: آيا تا هغه خپل ځوی داؤد عليه السلام ته نه و ورکړی ؟!!! ابو هريره رضی الله عنه وايي: بيا رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل: آدم عليه السلام انکار وکړ، نو له دې امله يې بچيو (نسل ، اولاده ) هم انکار وکړ. آدم عليه السلام هير شول د هغه د اولادونو هم د هير شول. آدم عليه السلام تېر ووت د هغه اولادونه هم تير وتل.

**دحديث تخريج:**

ترمذی و قال حديث حسن صحيح: أبواب تفسير القرآن عن رسول الله، باب من سورة الاعراف حديث: (۳۰۷۶)

**د حديث فائدې:**

۱: آدم علیه السلام د ټولو انسانو پلار دی .
۲ : په دې حدیث کې د الله عزوجل د انسانو په پیدا کولو او د هغوی په مرګ او بیا په ژوندي کولو د قدرت ذکر راغلی دی.
۳: د سالم او ښه فطرت لرونکی انسان په مخ کې نور وي لکه په دې حدیث کې چې د آدم علیه السلام د اولادونو د سترګو په منځ کې یو نور و، ځکه هغوی ګناهونه نه و کړي او ګناهونو څخه پاک و.
۴: په دې حدیث کې د دې ذکر هم شوی، چې آدم علیه السلام خپل اولادونه د انسانانو په شکل لیدلي وو او ددغه حدیث په یوه برخه کې راغلي چې: آدم علیه السلام په دې خلکو کې یو داسې سړی هم ولید، چې د هغه د سترګو ترمنځ سپینوالی او نور د ده ډېر خوښ شو.
۵: د الله عزوجل دا قول چې د داود علیه السلام په باره کې یې آدم علیه السلام ته وفرمایل: دا کس د آخرني امتونو څخه یو دی. د دې دا مانا نه ده، چې د آخرني امت څخه دې د رسول الله علیه السلام امت مراد وي.
٦: د مور او پلار بعضې عادات د هغوی بچیو ته هم انتقالیږی لکه په حدیث کې چې یې ذکر راغلی.

**۱۵ : تر ټولو ښه ضامن الله دی .**

**عَنْ أَبِي هريرة رضِي اللّٰهُ عنه عَنْ رسُولِ الله صلّى اللّٰهُ عليْه وسلّم: أَنَّهُ ذَكَر رجلاً منْ بَنِي إسْرائيل سأَلَ بعض بني إسْرائيل أَنْ يُسْلِفَهُ أَلْفَ دينار فقَالَ: ائتني بالشُّهَدَاء أُشْهِدُهُمْ. فقَالَ: كَفَى باللّٰهِ شهيدًا. قالَ: فأْتني بالْكَفِيل . قَالَ: كفَى باللّٰه كفيلاً. قَالَ: صدَقْتَ فدفَعها إليْه إلَى أَجلٍ مسمًّى، فخَرج في الْبحْرِ فقَضَى حاجته ، ثُمَّ الْتمس مركبًا يركبها يقْدم عليْه للْأَجل الّذي أَجَّلَه فلَم يجدْ مركبا ، فأَخذَ خشبةً فنقَرها فأَدْخل فيها أَلْفَ دينار وصحيفةً منْهُ إلَى صَاحبه ثُمَّ زجَّج موْضعها ثُمَّ أَتَى بها إلَى الْبحْرِ، فقَالَ: اللّٰهُمَّ إنَّكَ تعلَم أَنِّي كُنْتُ تسَلَّفْتُ فُلَانًا أَلْفَ دينَارٍ فسَأَلَني كفيلًا فقُلْتُ: كفَى باللّٰه كفيلًا فرضي بك، وسأَلَني شهيدًا فقُلْتُ: كفَى باللّٰه شهيدًا فرضِي بكَ، وأَنِّي جهدْتُ أَنْ أَجدَ مركبا أَبعثُ إليْه الّذي لَهُ فلَم أَقْدرْ وإنِّي أَسْتودعكَهَا فرمَى بها في الْبَحْرِ حتَّى ولَجتْ فيه ثُمَّ انْصرفَ وهو في ذلكَ يلْتمس مركبا يخْرجُ إلَى بلَدهِ، فخَرج الرَّجل الّذي كَانَ أَسْلَفَهُ ينْظُر لعلَّ مركبا قدْ جاء بماله ؛فإذَا بالْخشَبة الّتي فيها الْمالُ فأَخذَها لأَهْله حطَبا،فلَمَّا نشَرها وجد الْمالَ والصَّحيفَةَ ، ثُمَّ قَدمَ الّذي كَانَ أَسْلَفَهُ فأَتَى بالْأَلْفِ دينارٍ، فقَالَ: واللّٰه ما زلْتُ جاهدًا في طَلَبِ**

**مَرْكَب لآتيكَ بمَالكَ فَما وجدْتَ مركَبا قَبْل الذي أَتَيتَ فيه ، قَالَ: هَل كُنْتَ بعثْتَ إلَيَّ بشَيْءٍ ؟ قَالَ : أُخْبرُكَ أنِّي لَم أَجدْ مركَبا قَبل الذي جئتُ فيه ، قَالَ: فَإنَّ اللهَ قَدْ أَدَّى عَنْكَ الَذيَ بعثتَ في الْخَشَبَة فَانْصرِفْ بالْأَلْفِ الدِّينار راشدًا .**

د ابو هريرة رضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام د بني اسرائيلو د يوه كس ذكر كاوه چې:هغه د يوه بل كس نه زر ديناره قرض وغوښت هغه ورته وويل: داسی شاهدان راوله چې زه د هغوی په شاهدي اعتبار ولرم. قرض غوښتونكي ورته وويل: چې د الله عزوجل شاهدول كافي دي. قرض وركونكي ورته بيا وويل:كوم ضامن راكړه. قرض غوښتونكي ورته وويل: الله عزوجل د ضمانت لپاره كافي دی. قرض وركونكي ورته وويل: تا رښتيا وويل او د يوه ټاكلي وخت لپاره يې هغه ته قرض وركړ.

قرض اخيستونكی د څه كار لپاره د بحر په لاره په سفر لاړ، كله چې هغه خپل كار سرته ورسوه (حاجت يې پوره شو) نو د كشتۍ په تلاش كې و تر څو بېرته په خپل ټاكلي وخت كې قرض دار ته قرض وركړي، مگر هغه ته كشتۍ پيدا نه شوه. هغه يو لرگی را واخيست او په هغه كې يې سوری وكړ بيا يې زر ديناره او يو خط چې دده له خوا هغه قرض اخيستونكي ته يې ليكلی و په دغه سوري كې كېښودل هغه سوری يې بند كړ او د بحر خواته راغی او ويې ويل: ياالله ته خبر يې چې ما د فلاني نه زر ديناره قرض غوښتی ول او هغه رانه ضامن غوښتی وه او ما هغه ته ويلي ول، چې زما له لورې زما الله ضامن كافي دی او هغه هم په تا راضي شوی و هغه له ما څخه شاهد غوښتی و ما ورته وويل: زما له لوري زما د الله شاهدي كافي ده او هغه په دې رضا شو. ای الله! ته پوهيږې چې ما ډېر كوشش وكړ چې كومه بار وړونكې كشتۍ پيدا كړم چې د هغه قرض په ټاكلي وخت ور ورسوم، مگر زه په دې كامياب نه شوم، نو اوس يې زه دا ( قرض) تاته سپارم. دغسې هغه سړی هغه لرگی چې په هغه كې پيسې او خط و بحر ته وغورځاو هغه لرگی په اوبو كې و، هغه قرضدار يې بيا هم د دې په لټه كې و چې كشتۍ پيدا كړي او خپل ښار ته لاړ شي. بله خوا هغه كس چې قرض يې وركړی و د بحر په غاړه په دې انتظار و، چې كېدای شي كومې كشتۍ د ده مال راوړی وي. هغه په همدې انتظار كې و، چې په اوبو كې يې يو لرگی وليد. هغه يې را واخيسته تر څو هغه كور ته يوسي او ويې سوځوي، كله چې يې هغه لرگی مات كړ په هغه كې يې پيسې او خط وليده.

څه وخت وروسته هغه كس هم راغی چا چې قرض اخيستی و، هغه د زرو دينارو سره هغه كس ته راغی چې د چا نه يې قرض اخيستی وه (هغه دا سوچ كاوه چې كېدای شي چې هغه د چا نه قرض اخيستی وه هغه ته خپلې پيسې نه وي ور رسيدلي) او ورته يې وويل: قسم په رب ! چې ما ډېر كوشش وكړ چې كومه كشتۍ پيدا شي او زه په وخت ستا قرض بېرته تاته وسپارم خو كامياب نه شوم، مگر نن

ایله کامیاب شوم او راغلم. هغه کس ورته وویل: دا راته ووایه چې تا زما په نوم څه را لېږلي و ؟ قرض داره ورته وویل: همدا درته وایم چې زه په دې ونه توانیدم چې کومه کشتۍ مې پیدا کړي وه، مگر نن وتوانیدم او راغلم. قرض ورکونکي ورته وویل: الله عزوجل ستا هغه قرض اداء کړ کوم چې تا زما په نوم په لرگي کې رالیږلی و، قرضدار په خوشحالي سره د خپلو زرو دینارو سره بېرته ستون شو.

**دحدیث تخریج:**

بخاری : کتاب الکفالة ،باب الکفالة في القرض والدیون بالأبدان وغیرها (۲۲۹۱) . اوپه کتاب الزکاة ،باب : ما یستخرج من الماء ( ۱۴۹۸) اوپه کتاب البیوع ،باب : التجارة في البحر کې مختصر روایت کړی ( ۲۰۶۳) ،همداسی بخاري په کتاب الاستقراض والدیون ،باب : اذا أقرضه الی أجل مسمی أو أجله فی البیع کې په مختصر ډول راوړی، (۲۴۰۴) ،او په کتاب الشروط ،باب : الشروط في القرض کې په مختصر ډول راوړی دی،(۲۷۳۴)

**د حدیث فائدې:**

۱: پورتنی کیسه مونږ ته دا رابنیي چې په بني اسرائیلو کې خیر او عدل شتون درلود.

۲: تر ټولو بهترین شاهد او کفیل الله عزوجل دی، څکه خو په دغه حدیث کې هغه سړي ویلی ول:

(ائْتني بالشُّهَدَاء أُشْهدُهُمْ. فقَالَ: كَفَى بالله شَهيدًا. قَالَ: فَأْتني بالْكَفيل . قَالَ: كَفَى بالله كَفيلاً. ) .

۳: په خپل وخت کې قرض ورکول تر ټولو اولنیو حقوقو او واجباتو څخه دی.

۴: په یقین سره دعا کول د دعا د قبلېدلو سبب گرځي خو د اسبابو لټول هم مهم دي لکه په دغه پورتنۍ کیسه کې چې دغه سړي په شپږو ځایونو کې د اسبابو د پیدا کولو کوشش کاوه.

الف: د هغه دا کوشش تر څو یوه کشتۍ پیدا کړي، خو هغه کامیاب نشو.

ب: د هغه سړي خبره چې ما ډېر کوشش وکړ خو کامیابه نه شوم.

ج: د لرگي پیدا کول او هغه سوری کول.

د: تر هغې د هغه ځایه لاړ نه، تر څو چې هغه لرگی په بحر کې روان نشو.

ه: څه وخت یې چې لرگی اوبو ته وغورځاوه د هغې نه وروسته بیا هم د کشتۍ په لټه کې و.

و: هغه سړی د ځانه سره زر دیناره اضافي هم را اخیستي و تر څو خپل قرض په صحیح توگه ادا کړي.

۵: رحمن او رحیم رب د هغه سړي دعا قبوله کړه او هغه لرګی چې ده په کې پیسې ایښې وې هغه خپل حقداره ته ورسېدلې، کله چې هغه په بحر کې لرګی ولید نو هغه یې را واخیسته تر څو  ترېنه په کور کې ګټه واخلي، خو په هغه کې یې پیسې ولیدلې.
٦: د هر هغه کارونو او خبرو نه ځان ساتل په کار دي، چې د هغې له امله دعا نه قبلېږي لکه: حرام او د غلا مال، رشوت، سود او داسی نور. أبو هریره رضی الله عنه نه روایت دی چې وایي: رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام وفرمایل:
**(الرَّجُلَ يُطِيلُ السَّفَرَ أَشْعَثَ أَغْبَرَ يَمُدُّ يَدَهُ إِلَى السَّمَاءِ يَارَبِّ يَا رَبِّ وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ وَغُذِّيَ بِالْحَرَامِ فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ ).**
هغه کس چې ډېر اوږده سفرونه کوي او په ګردونو او دوړو کې پټ وي خپل لاسونه یې د آسمان لورته نیولي وي او داسې دعا کوي، چې یارب! یارب حال دا چې د هغه خوراک هم حرام وي، څښاک یې هم حرام وي، لباس یې هم حرام وي او غذا یې هم حرامه وي آیا د هغه دعا به قبوله شی.
مسلم: كتاب الزكاة، باب: قبول الصدقة من الكسب الطيب وتربيتها (١٠١٥)
ترمذي: ابواب تفسير القرآن باب، ومن سورة البقرة (٢٩٨٩ )
٨: هر انسان باید په دې پوه شې، چې هغه چا چې ده ته یې قرض ورکړی هغه به خپل مال ته سخت اړ او محتاج وي لکه په دغه حدیث کې چې راغلي و چې هغه سړي د بحر غاړې ته تللی و تر څو وګوري چې کومه کشتۍ خو د ده مال نه دی روان ړی.
٩: د الله عزوجل نه وېره کول د ژوندانه د آسانی سبب ګرځي، ځکه خو اول ته الله عزوجل خپل مال وسپاره او هغه بل اضافي زر درهمه د ځانه سره را اخیستی و او هغه سړي ته ورغی چې هسې نه ده ته خپل مال نه وي رسیدلی او دا ورکړي، خو هغه ورته وویل: چې ماته مال را رسیدلی. الله عزوجل فرمایلی:
( ومن يتق الله يجعل له مخرجا) .
الله عزوجل دې ما او تاسو د رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام د دغه دعا په کسانو کې وګرځوي چې وایې:
**اللهم اكفني بحلالک عن حرامک .**

**١٦: د الله عزوجل عظمت او د هغه نه ویره.**

**عَنْ أَبِي هريرةَ عَنِ النَّبِيِّ – صلى الله عليه وسلم – قَالَ « رأَى عيسَى رجلاً يسرقُ ،فَقَالَ لَهَ: أَسرقْت ؟ قَالَ :كَلاَّ والَله الذى لاَ إِلَهَ إِلاَّ هَو . فَقَالَ عيسَى : آمنْتَ باللهِ ،وَكَذَّبْتُ عينى.**
د ابو هریرة رضی الله عنهَ نه روایت دَی، چې رسول الله عَلیه افضل الصلاة والسلام وفرمایَل:

عيسى عليه السلام يو سړى په غلا کولو وليد، هغه ته يې وويل: تا غلا وکړه ؟ هغه ورته ځواب ورکړ: زما دې په هغه الله قسم وي چې د هغه نه بغير بل څوک د عبادت لائق نه دى ما غلا نه ده کړې عيسى عليه السلام وويل: ما په الله ايمان راوړ او په خپلو سترګو دوکه شوم (په سترګو ليدل شوى حال دروغ ګڼم ).

**دحديث تخريج :**

بخارى واللفظ له: کتاب احاديث الأنبياء، باب قول الله تعالى ( واذکر فى الکتب مريم اذ انتبذت من أهلها، حديث ( ٣۴۴۴)
مسلم: کتاب الفصائل، باب فضائل عيسى عليه السلام، حديث: (٣٣۶٨)
نسايي: کتاب أداب القضاء، باب کيف يستحلف الحاکم، حديث ( ۵۴٢٩)
ابن ماجة: ابواب الکفارات، باب من حلف بملة غير الاسلام، حديث (٢١٠٢)

**د حديث فائدې :**

١: د نبيانو او مؤمنو دا صفت دى چې که په ظاهره يو څه ويني، نو بيا هم د هغې په باره کې پوښتنه کوي لکه په دغه مبارک حديث کې چې عيسى عليه السلام هغه کس وليد، چې غلا يې وکړه او بيا يې هم ورته وويل: چې غلا دې وکړه ؟ تر څو نوره هم روښانه شي.

٢: څوک چې قسم کوي هغه ته په کار دي، چې هغه رښتونى وي ځکه د عمران بن حصين رضى الله عنه نه روايت دى چې وايي: رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:

(مَنْ حَلَفَ عَلَى يمِينٍ مَصْبُورَةٍ كَاذِبًا ،فَلْيَتَبَوَّأْ بِوَجْهِهِ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ).

چا چې د دروغو قسم (د کوم مشر او يا حاکم په مخکې) وخوړ، نو هغه دې په جهنم کې د خپل مخ ځاى جوړ کړي.

ابي داود: اول کتاب النذور والايمان، باب: التلغيظ فى اليمين الفاجرة ( ٣٢۴٢).

٣: د قسم لويوالي عيسى عليه السلام ديته مجبور کړ، چې هغه ووايي چې ما په الله ايمان راوړى دى او زما نفس زه د دوکې ښکار کړم.

۴: عيسى عليه السلام چې خپل ځان دروغژن وګاڼه دا څو اسباب لري.

الف: دغه سړى چې دغه مال ور سره و کېداى شي په هغه مال کې د ده حق و.

ب: کېداى شي د مال څښتن هغه ته د اخيستلو اجازه ورکړي وي او يا هم د مال څښتن هغه ته دغه مال په خپله ورکړى وي.

ج: کېداى شي د هغه نيت د دغه مال اخيستلو نه غلا او غصب نه وه.

د: کېداى شي عيسى عليه السلام ته داسې برېښيدلي وي، چې هغه څه واخيستل، ځکه هغه سړى چې قسم وخوړ عيسى عليه السلام تېر شو او هغه يې پريښود.

هـ: په خلکو باید تل د ښو گومان وشي

**۱۷ : جنت کی هر هغه څه شته چی انسان یی وغواړي.**

**عن أَبِي هريرةَ رَضيَ اللهُ عَنْهُ، " أَنَّ النَّبيَّ صلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم كَانَ يوما يحدِّثُ وَعِنْدَهُ رجل منْ أَهْلِ الْبادية : ( أَنَّ رجلًا منْ أَهْلِ الْجنَّة استأْذَنَ ربَّهُ في الزَّرْعِ ،فقَالَ لَهُ : أَولَستَ فيمَا شئْتَ ؟ قَالَ : بلَى ،ولَكنِّي أُحبُّ أَنْ أَزْرَعَ ،فأسرعَ وبَذَر ،فتبادر الطَّرْفَ نباتُه واسْتواؤُهُ واسْتحصَادُهُ وَ تكويرهُ أَمْثالَ الْجبال ،فيقُولُ اللهُ تعالى : دونَكَ يا ابن آدم،فإنَّهُ لايشْبعكَ شَيء )،فقَالَ الْأَعْرابيُّ : يا ر سولَ اللهَ لاتَجدُ هذا إلَّا قُرشيًّا أَو أَنْصاريًّا ،فإنَّهُمْ أَصْحاب زرعٍ ،وأَمَّا نحن فلَسنا بأَصْحاب زرعٍ ،فَضحكَ النَّبيُّ صلَّى اللهُ عَلَيْه وسلَّم .**

د ابو هريرة رضی الله عنه نه روايت دی، چې يوه ورځ رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام خبرې کولې او په دغه وخت کې هلته يو کوچی (شپون) هم ناست و رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:

په جنت کې يو جنتي د الله عزوجل نه د کرنې اجازت وغوښت. الله عزوجل ورته وفرمايل : آيا هغه څه چې ته يې غواړې نه يې لرې؟ هغه ورته وويل: ولي نه؟!! خو زه غواړم کرنه وکړم هغه سمدستي کرنه وکړه او د هغه کرنه غټه شوه او بيا هغه اواره شوه او مېوه يې ونيوله او د غرونو په اندازه يې ذخيره شوه. الله عزوجل به ورته و وايي : ای بني آدمه ! دا واخله ، تا هيڅ شی هم نشی مړولی ، هغه کوچی ( شپون) و ويل : ای د الله رسوله ! دا به کوم قريشی يا انصاري وی ځکه همدا خلک دهقانان ( زميندارن) دی مونږه خو دهقانان نه يو ، رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام د شپون په دی خبره وخندل .

**دحديث تخريج :**

بخاری: کتاب التوحيد ، باب کلام الرب مع أهل الجنة، حديث (۷۵۱۹) او په کتاب المزارعة ، باب : کراء الأرض بالذهب والفضة (۲۳۴۸)

**د حديث فائدې :**

۱: رسول الله عليه الصلاة والسلام به صحابه رضی الله عنهم جنت ته تشويقول او د جنت کيسې به يې ورته کولې.

۲: جنتيان به د الله عزوجل سره خبرې کوي.

۳: په جنت کې د نفس شهوات او غوښتنې پوره کېږی لکه څنگه چې په دغه حديث کې هغه جنتي د کرني سوال کړی و او الله عزوجل د هغه سوال قبول کړ. الله عزوجل فرمايلی:

( وَلَكُمْ فِيهَا مَاتَشتَهِى أَنفُسكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَاتَدَّعُونَ ) ، فصلت ۳۱ ايت .

۴: په جنت کې چې انسان د دنياوی شيانو نه څه وغواړي هغه ورته حاصليږی.
۵: که انسان لږ سوچ وکړي، نو په دې به پوه شي چې هغه د دنيا لپاره نه دی پيدا شوی، ځکه که يو کس ټوله دنيا هم ولري، نو هغه پرې نه مړيږی.
٦: د هغه کوچي خبرې ته د رسول الله عليه الصلاة والسلام خندا کول دا ثابتوي چې رسول الله عليه الصلاة والسلام ډيره زياته تواضع درلودله.

**۱۸ : ځان وژنه .**

**عن جنْدَب بن عَبْد الله الْبَجَليُّ قال : قَالَ رَسُول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وَسَلَّم إنَّ رجلًا ممَّنْ كَانَ قَبْلَكُم ،خَرجتْ بهِ قُرحةٌ ،فَلَمَّا آذَتْه ،انْتزعَ سهمًا منْ كنَانَته فنَكَأَها ،فلَم يرقَإ الدَّم حتَّى ماتَ ،قالَ ربُّكُم : " قَدْ حرَّمتَ علَيْه الْجنَّةَ " .**

د جندب بن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه افضل الصلاةوالسلام وفرمايل: په مخکنيو خلکو کې په يوه کس دانه را وخته. کله چې هغه د دغې دانې نه ډېر په تکليف شو، نو هغه د خپلو غشو د کڅوړې نه يو غشی را وويست او هغه دانه يې پرې څيری کړه او هغه د وينې د نه بندېدو له امله مړ شو. رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل: الله عزوجل وفرمايل: ما په هغه جنت حرام کړ.

**دحديث تخريج :**

بخاری: کتاب أحاديث الأنبياء، باب ما ذکر عن بني اسرائيل، حديث: (۳۴۶۳) او بخاري په کتاب الجنائز، باب: ما جاء فی قاتل النفس (۱۳۶۴)
مسلم وللفظ له: کتاب الايمان، باب: بيان غلظ تحريم قتل الانسان نفسه ... حديث(۱۱۳) .

**د حديث فائدې:**

۱: ځان وژنه حرامه ده او په ځان وژونکي جنت حرام دی.

۲: په ځان وژونکي جنت حرام دی، ځکه کېدای شي هغه خپله وژنه داسې حلاله ګڼلي وي لکه یو کس چې شراب حلال ګڼي، نو د هغوی ځای بیا دایمي جهنم دی.

۳: چې ځان وژنه حرامه شوه، نو د بل وژنه خو بیخي حرامه ده.

۴: د الله حدودو ته تسلیمېدل ځکه زمونږ نفسونه زمونږه نه دي بلکې دا د الله عزوجل امانت دی.

الله عزوجل فرمایلی:

**(تِلْكَ حُدُودُ اللّهِ فَلاَ تَعْتَدُوهَا وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ اللّهِ فَأُوْلَـئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ) . دبقرې سورت ۲۲۹ آیت.**

دا ذکر شوي شیان د الله حدود دی، نو تاسو د الله عزوجل له حدودو څخه مه تېرېږئ او هغه څوك چې د الله د حدود څخه تېرېږي، نو همدغه کسان ظالمان دي.

۵: هر هغه شی چې انسان وژني ته نزدې کوي هغه حرام دی.

٦: په هر څه صبر کول تر څو انسان داسې حال ته ونه رسېږی، چې هغه بیا د اولني حال نه ډېر دردناک او سخت وي. الله عزوجل فرمایلی:

**(وَلَنَبْلُوَنَّكُم بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنفُسِ وَالثَّمَرَاتِ ۗ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ) بقرة ۱۵۵.**

او مونږ تاسو په یوه شي آزمویو، چې هغه عبارت دی د دښمن له وېره، لوږې (قحطی) او د مالونو نفسونو او د مېوو کموالی ده او صبر کونکو ته زیری ورکړه.

**۱۹ : د الله عزوجل رحمت .**

**عن أَبي هريرةَ رَضيَ اللهُ عنهُ ،عَن النَّبيِّ صَلى اللهُ عَلَيْه وسَلم ،قَالَ : "كَانَ رجل يسرفُ علَى نَفْسه فَلَمَّا حضَرَه الْموتَ،قَالَ لبنيه : إِذَا أَنَا متُّ فَأَحْرقُوني ثُمَّ اطْحَنُوني ثُمَّ ذَرُّوني في الرِّيحِ ، فَو اللّه لَئنْ قَدر  الله عَلَيَّ ربِّي لَيعذّبنِّيَ عَذَابًا ما عذّبهُ أَحدًا ،فَلَمَّا ماتَ فُعلَ به ذَلكَ فَأَمر اللّهُ تعالى الْأَرض ، فَقَالَ : اجْمعي ما فيك منْهُ ،فَفَعلَتْ فإِذا هو قَائمٌ ،فَقَالَ : ما حملَكَ علَى ما صنَعتَ ؟،قَالَ : يا ربِّ خَشْيتكَ حملَتنى ، فَغفَر لَهَ ،وقَالَ غَيره مخَافَتك يارب " .**

د ابو هريرة رضی اللّه عنه نه روایت دی، چې رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام وفرمایل:

یو کس چې هر وخت به یې خپل وخت عبث تېراوه (د ګناهونو په کولو به اخته و او د حد نه زیاته ګناه به یې کوله) کله چې یې مر ګ را نزدې شو خپلو بچیو ته یې وویل: کله چې زه مړ شوم ما وسوځوئ او بیا مې اوړه کړئ  او بیا مې د باد په خوله ورکړئ ( په باد کی می خوشی کړی چی باد می ویسی )، والله! که رب مې راباندې قوت وموند نو داسې عذاب به راکړې چې چاته یې هم نه وي ورکړی، کله

چې مړ شو نو يې اولاد هغه څه ورسره وکړل چې ده يې وصيت کړی وو، بيا الله تعالی ځمکې ته امر وکړ، چې د ده اجزاء را غونډ کړي، ځمکې همداسې وکړل او دی (د الله تعالی په وړاندې) ولاړ وو، الله تعالی ځنې وپوښتل: ولې دې داسې وکړل؟ ده ورته عرض وکړه ربه! ستا له ويرې، نو الله تعالی هغه وباښه.

**د حديث تخريج :**

بخاری وهذا لفظه: كتاب أحاديث الأنبياء، باب حديث الغار: حديث ( ۳۴۸۱) او (۳۴۷۸ ) او (۳۴۷۹) او په كتاب التوحيد، باب: قول الله:(يريدون أن يبدلوا كلم الله) حديث (۷۵۰۶)او بخاری همداسې په کتاب: الرقاق، باب: الخوف من الله، حديث: (۶۴۸۱)
مسلم: كتاب التوبة، باب فی سعة رحمة الله تعالی و أنها تغلب غضبه: حديث ( ۲۷۵۶)
نسايي: كتاب الجنائز، معجم (باب) ارواح المؤمنين، حديث (۲۰۸۱)
ابن ماجة: أبواب الزهد، باب: ذكر التوبة (۴۲۵۵)

**د حديث فايدې :**

۱: هر مؤمن ته پکار دي چې د ګناه د کولو نه ځان وساتي، ځکه شيطان بيا په آخر کې انسان د مغفرت نه مايوسه کوي.

۲: هر هغه کس چې ډېر ګناهونه يې کړی وي هغه ته پکار دي، چې توبه اوباسي او د لله عزوجل د رحمت نه مايوسه نه شي.

۳: کله نا کله دوالدينو جهل بچيانو کې هم پاتې کېږی لکه دغه پورتنی کيسه کې چې پلار خپلو بچيو ته ويلي وو، چې کله زه مړ شوم نو ما وسوځوئ او ايرې يې باد ته خوشې کړئ.

۴: الله عزوجل د انسان په بيا پيدا کولو قادر دی لکه په دغه حديث کې چې الله عزوجل ځمکې ته امر کړئ.

۵: د الله عزوجل رحمت د هغه د غضب نه مخکې دی. د ابو هريرة رضی الله عنه نه روايت دی، چې وايي رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:

**(إِنَّ اللَّهَ لَمَّا قَضَى الْخَلْقَ كَتَبَ عِنْدَهُ فَوْقَ عَرْشِهِ إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي) ،**

ژباړه: الله عزوجل چې کله مخلوقات پيدا کړ د عرش دپاسه يې وليکل: زما رحمت په غضب باندې مخکې دی.

بخاري: كتاب التوحيد، باب: و كان عرشه على الماء ( ۷۴۲۲ )
مسلم: كتاب التوبة، باب: فی سعة رحمة الله تعالی، وأنها تغلب غضبه (۲۷۵۱)
ترمذي: ابواب الدعوات، باب: ان رحمتی تغلب غضبی (۳۵۴۳) ابن ماجة: (۴۲۹۵)

**٢٠ : د الله عزوجل ښښنه .**

**عن أَبِي هريرةَ ،عن رسُول الله صلَّى اللهُ علَيْه وسلَّم ،قَالَ : " إنَّ رجلًا لَم يعمل خيرا قَطُّ وكَانَ يُدَاين النَّاس ،فَيقُولُ لرسُوله : خُذْ ما تَيسَّر ،وَ اتْرك ما عَسر ،و تجاوزْ لَعلَّ اللهَ تعالَى أَنْ يتجاوز عنَّا ،فَلَمَّا هلَكَ . قَالَ اللهُ عَزَّ وجلَّ لَه : هل عَملْتَ خَيرا قطُّ ؟ , قَالَ : لا ،إلا أَنَّهُ كَانَ لي غُلَام وكُنْتُ أُدَاينُ النَّاس ،فَإذَا بعثْته ليتقاضَى ،قُلْتَ لَه : خَذْ ما تَيسَّر و اتْرك ما عَسر و تَجاوزْ لَعلَّ اللهَ يتجاوزَ عنَّا . قَالَ اللهُ تَعالَى : قَدْ تَجاوزْتَ عنْكَ .**

د ابی هریرة رضی الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام وفرمایل: یو کس هېڅ ښه کار نه و کړی، مګر هغه خلکو ته قرض ورکاوه هغه به خپل استازي ته(چې د قرضونو پسې به یې لیږه) ویل: خلکو ته چې څه اسانه وو هغه اخله او چې ورته ګران وو هغه پرېږده او در ګذر کوه کېدای شي الله عزوجل مونږ ته(دګناهونو په ښښلو کې) در ګذر وکړي. کله چې دغه کس مړ شو الله عز وجل ورته وفرمایل: آیا تا کوم نېک کار کړی؟ هغه ورته وویل: نه! مګر ما به خلکو ته قرض ورکاوه او زما یو غلام و کله به چې هغه د قرض د پیسو راوړلو پسی ته، نو ما به هغه ته ویلې: څه چې درته خلک په اسانی درکوي هغه اخله او د هغوی سره سختتي مه کوه او ښښنه ورته کوه کېدای شي الله عزوجل مونږ ته (په دغه کار) ښښنه وکړي. الله عزوجل ورته وفرمایل: ما هم ته معاف کړی.

**دحدیث تخریج :**

بخاري: کتاب البیوع ، باب من أنظرمعسرا، حدیث: (٢٠٧٨)او په أحدیث الأنبیاء، باب: حدیث الغار، حدیث (٣٤٨٠ )

مسلم: کتاب المساقاة، باب فضل انظار المعسر والتجاوز فی الاقتضاء من الموسر والمعسر، حدیث: (١٥٦٢)

ترمذي د أبی مسعود نه د الفاظو په اختلاف راویت کړی دی. ابواب البیوع عن رسول الله، باب: ماجاء فی اتظار المعسر والرفق به (١٣٠٧)

سنن النسایي و هذا لفظه : کتاب البیوع، باب: حسن المعاملة والرفق فی المطالبة، حدیث ( ٤٦٩٨)

**د حدیث فائدي :**

١: په معامله کې اساني او نرمي د عذاب څخه د خلاصون سبب ګرځي. د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی. چې وایي رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام وفرمایل:

**( أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِمَنْ يَحْرُمُ عَلَى النَّارِ أَوْ بِمَنْ تَحْرُمُ عَلَيْهِ النَّارُ عَلَى كُلِّ قَرِيبٍ هَيِّنٍ سَهْلٍ).**

آیا زه تاسو ته داسي څوک در ونه ښیم چې په هغه د دوزخ اور حرام دی او هغه د دوزخ پر اور حرام دی ؟ هغه، هغه کس دی چې خپلوانو ته اساني او سهولت ورکوي.

ترمذي: أبواب صفة القیامة(والرقائق والورع عن رسول الله) باب: فضل کل قریب هین سهل ( ٢٤٨٨)

۲: د قیامت په ورځ هېڅوک هم دروغ نه شي ویلی او نه هم څه پټولی شي.
۳: په نورو رحم او په په سختیو کې د هغوی سره مرسته د الله عزوجل د رضاء سبب گرځي لکه په پورتنی کیسه کې چې الله عزوجل هغه بنده ته چې هغه هېڅ نیک عمل نه و کړی وویل: ما ستا گناهونه وبښل.

**۲۱ : په ښه انداز دعوت د نجات سبب گرځي .**

**عن أَبي هَريرةَ قال : سَمِعْتُ رسولَ الله صلّى اللهُ عَلَيْه وسلّم يقُولُ : ( كَانَ رجُلانِ في بَني إِسْرائيل مُتَواخيين ،فكَانَ أَحدُهمَا يُذْنِب والآخر مجْتَهدٌ في الْعبَادَة ،فكَانَ لايزالُ الْمجْتَهدُ يرى الآخَر علَى الذَّنْب فيَقُولُ : أَقْصِرْ ؛فوجدَه يوما علَى ذَنْب فقَالَ لَه : أَقْصِرْ . فقَالَ : خلّني وربِّي أَبُعِثْتَ علَيَّ رقِيبا ،فقَالَ : واللهِ لايغْفِرُ اللهُ لَكَ ،أَو لا يُدْخِلُكَ اللهُ الْجنَّةَ ،فقَبض أَرواحهمَا فاجتمعا عنْدَ ربِّ الْعَالَمين ،فقَالَ لهَذا الْمُجْتَهد : أَكُنْتَ بي عَالِمًا ؟أَو كُنْتَ علَى ما في يدي قَادرا ؟ وقَالَ للْمُذْنِب : اذْهبْ فَادْخل الْجَنَّةَ برحْمتي،وقَالَ للآخَرِ : اذْهبوا به إِلَى النَّار).**

دَ ابوَ هَريرة رضی الله عنه نه روَایت َدی چېَ وایيَ: ما درسول الله علیه افضل الصلاة والسلام نه واورېدل چې ویل يې:

په بني اسرائیلو کې دوه کسانو یو بل ته ورور ویلي وو. یو به په گناهونو کې مشغول و او بل به په عبادت کې ډېر کوشش کاوه ،عبادت کونکي به چې کله هم هغه بل په گناهونو کې غرق لید، نو هغه ته به يې د گناه د پرېښودلو وصیت کاوه. هغه یوه ورځ هغه په گناه کولو ولید نو ورته يې وویل: داسې مه کوه! هغه ورته وویل: ما خپل رب ته پرېږده. آیا ته زما د حال او اعمالو ساتونکی ټاکل شوی يې هغه ورته وویل: په خدای قسم! چې الله به تاته ښښنه ونه کړي. کله چې هغوی دواړه مړه شول او د الله عزوجل په مخ کې وړاندی شول. الله عزوجل په عبادت کې کوښښ کونکي ته وویل: آیا تا زما په باره کې ډېر معلومات درلودل او که هغه څه چې زما په لاس کې دي ته په هغې قادر وې. الله عزوجل گنهگار ته وویل: ځه او زما په رحمت جنت ته داخل شه او هغه بل ته يې وویل: دا (د جهنم اور ) اور ته بوځئ. ابو بکر رضی الله عنه وایي: په هغه ذات مې د ې قسم وي، چې زما نفس د هغه په واک کې دی هغه داسې یوه خبره وکړه چې د هغه دنیا او اخرت يې تباه کړ.

**دحدیث تخریج :**

سنن أبي داود: أول كتاب الأدب، باب في النهي عن البغي. حديث (۴۹۰۱ )

**د حدیث فائدې :**

۱: گناهگار او تیروتلي ته نصیحت ډېر بد ښکاري.
۲: کله چې یو کس چاته نصیحت او کومه ښه خبره کوي او دا ورته معلومه شوه، چې اوس نصیحت او یا د ښی خبرې کولو نه نور مشکلات پیدا کېږي، نو په انسان واجبه ده چې نصیحت کول پرېږدي.
۳: کوم کس چې بل ته نصیحت یا ښه خبره کوي هغه ته په کار دی د ډېرې نرمۍ، صبر او حلم نه کار واخلي.
۴: هر هغه کس چې بل سره په دنیا کې دعوه لري او یا یې ورسره جنګ کړی وي د قیامت په ورځ سره یو ځای کېږي تر څو د هغوی منځ کې انصاف وشي لکه پورتنی کېسه کې چې راغلي.
۵: د غیبو په پوهېدلو او یا د دې دعوه کول چې زه د سبا نه خبر یم کفر دی.
٦: الله عزوجل گنهگار ته وویل: (ته زما په رحمت سره جنت ته لاړ شه) او هغه چې مجتهد و د هغه په باره کې یې وویل: (دا اور ته بوځئ) د ابي هریرة رضی الله عنه نه روایت دی، چې وایي رسول الله علیه الصلاة والسلام وفرمایل:
**(إِنَّالله خَلَقَ الرَّحْمَةَ یومَ خلَقَهَا مائةَ رحمةٍ ،فَأَمسَكَ عندهُ تسعة وتسعینَ رحمة ،و أرسلَ في خَلقِهِ کلِّهم رحمة واحدة ،فَلو یَعلمُ الکافرُ بِکلِّ الذي عند اللهِ من الرحمةِ لم یَیْأسْ مِن الجنة ،و لو یعلم المُؤمن بکل الذي عندَ اللهِ من العذابِ لم یَأْمَن من النار ).**
کله چې الله عزوجل رحمت پیدا کړ، نو هغه یې سل برخې (حصې) کړ. نهه نوي برخې د خپل ځان سره وساتلې او یوه برخه یې ټولو مخلوقاتو ته را ولیږه. که چېرته کافر ته د هغه رحمت معلومات وشي چې هغه د الله عزوجل سره دی، نو هغه به د جنت نه نا امیده نشی او که مؤمن ته د هغه عذاب معلومات وشي، چې هغه د الله سره دی، نو هغه به د دوزخ څخه هېڅ وخت بې ویرې پاتې نه شي.
بخاري: کتاب الرقاق، باب: الرجاء مع الخوف ( ۶۴۶۹)

**۲۲ : دوه ښځې او انصاف .**

**عن أَبي هریرةَ رضي اللهُ عنه أَنَّ رسولَ الله صلَّی اللهُ علَیْه وسلَّم قَالَ : کَانَتْ امرَأَتَان معهما ابناهما ،جاء الذِّئبُ فَذَهَب بابنِ إحْداهما فَقَالَتْ لصاحبَتِها : إنَّمَا ذَهَب بابْنك ، فقَالَتْ الأُخْری :إنَّما ذَهَب بابنْك ،فَتحاکَمت اإِلَی داودَ علَیْه السَّلَامَ ،فَقَضَی به للْکُبْرَی، فَخَرجتا علَی سلَیمانَ بن داود عَلَیْهماَ السَّلَام ،فأَخبرتَاهَ فَقَالَ :ائتونيَ بالسِّکین أَشُقُّه بینهَما ،فَقَالَتْ الصُّغْرَی :لَا تَفْعل ، یرحَمكَ اللهُ ، هو ابنها فَقَضَی به للصُّغْرَی .**
د ابو هریرة رضی الله عنه نه روایتَ دی، چې رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام وفرمایل: دوه ښځې وې چې هغوی سره دوه ځامن ول. لېوه راغی او د هغو ښځو څخه یې د یوې ښځې ځوی یوړ ، یوې ښځې بلې ته وویل: ستا ځوی لېوه یوړ دا بلې ورته وویل: نه! ستا ځوی لېوه یوړ. هغه دواړه

ښځې داود عليه السلام ته د فيصلې لپاره راغلې. داود عليه السلام فيصله د لوې ښځې په حق کې وکړه. هغه دواړه سليمان بن داود عليهما السلام ته راغلې او کيسه يې ورته وکړه. سليمان عليه السلام ورته وويل:

چاړه (چاقو) راوړی ترڅو دا ماشوم دوه ټوټې کړم او هره ټوټه يې يوې يوې ته ورکړم. کشرې (وړی) ښځې وويل: الله دې درباندی ورحمېږی داسې مه کوه. دا د مشرې ځوی دی. سليمان عليه السلام چې د کشرې ښځې دا خبرې واورېدې، نو د کشرې (وړې) په حق کې يې فيصله وکړه او ځوی يې ورته وسپاره.

**دحديث تخريج :**

بخاری و هذا لفظه: کتاب احاديث الأنبياء، باب: قوله تعالى: و وهبنا لداود سليمن نعم العبد انه أواب، حديث: (۳۴۲۷)او په کتاب الفرائض، باب: اذا ادعت المرأة ابنا (۶۷۶۹)
مسلم: كتاب الأقضية، باب اختلاف المجتهدين، حديث: (۱۷۲۰)
سنن النسائي: كتاب آداب القضاء، باب حكم الحاكم بعلمه (۵۴۰۴)

**د حدث فائدې:**

۱: جنگ د انسان خاصيت دی لکه په پورتنی کېسه کې يوې ښځې بلې ته وويل: ليوه ستا ځوی وړی دی او بلې ورته وويل: نه. بلکې ستا ځوی يې وړی دی.

۲: د جنگ په وخت کې په بل فيصله کول يو ښه کار دی.

۳: دا شوني ده چې ځوی دی د پلار نه په احکامو ډېر پوه وی.

۴: د حق د ښکاره کېدلو لپاره حيله کول جائز دي.

۵: د مور د رحم نه د الله رحم اووه ځله ډېر دی او بل داسې څوک نشته چې هغه د مور د ترحم نه ډېر ترحم ولري.

**۲۳ : د سليمان عليه السلام د عاگاني .**

**عَن عَبْد اللَّه بْن عَمْرو ،عَن رَسُول اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ " أَنَّ سُلَيْمَانَ بْن دَاوُدَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ لَمَّا بَنَى بَيْتَ الْمَقْدس ، سَأَلَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ خلَالًا ثَلَاثَةً : سَأَلَ اللَّهَ عَزَّو جَلَّ حُكْمًا يُصَادفُ حُكْمَهُ فَأُوتيَهُ ،وَسَأَلَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ مُلْكًا لَا يَنْبَغي لأَحَد منْ بَعْده فَأُوتيَهُ ،وَسَأَلَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ حينَ فَرَغَ منْ بنَاء الْمَسْجد أَنْ لَا يَأْتيَهُ أَحَدٌ لَا يَنْهَزُهُ إلَّا الصَّلَاةُ فيه أَنْ يُخْرجَهُ منْ خَطيئَته كَيَوْم وَلَدَتْهُ أُمُّهُ .**

د عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل:

سليمان بن داود عليهما السلام چې کله بيت المقدس جوړ کړ، نو د الله عزوجل نه يې درې سوالونه وکړل.

(۱) داسې فيصله (حکم) چې دهغه (الله عزوجل) د حکم مطابق وي.

(۲) داسې پاچاهي چې د ده نه وروسته د بل چا په نصيب نه شي.

(۳)کلهچې د بيت المقدس د جوړولو نه فارغ شو نو داسی دعا يې وکړه : هر څوک چې دې جومات ته صرف د لمونځ په نيت راشي هغه دې د گناهونو نه داسې پاک شي  لکه په کومه ورځ چې د مور څخه د گناهونو څخه پاک پيدا شوی يې.

**دحديث تخريج :**

سنن النسايي و هذا لفظه: کتاب المساجد، باب فضل المسجد الأقصى والصلاة فيه، حديث (۶۹۴)
ابن ماجة: أبواب اقامة الصلوات والسنة فيها، باب ماجاء فى الصلاة فى مسجد بيت المقدس. حديث (۱۴۰۸)

**د حديث فائدې :**

۱: کله چې د صالحينو نوم ياديږی بايد دعا ورته وشي او دا کار د اسلام له ادابو څخه دی.

۲: که يو کس بل ته د هغه په نه شتون کې دعا کوي، نو داسی يوه فرښته شته چې ستا دعا ته امين وايي او همغسې دعا چې تا کړې تاته کوي. د ابو الدرداء رضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام فرمايلی:

**(مَنْ دَعَا لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ قَالَ : الْمَلَكُ الْمُوَكَّلُ بِهِ آمِينَ ،وَلَكَ بِمِثْلٍ ).**

ژباړه:کله چې څوك خپل بل ورور ته د هغه په غياب کې دعا وکړي، نو موکلة فرښته دهغه ددعا په ځواب کې وايي آمين او تاته دې هم دا څه (چې ده دعا کړي وئ) حاصل شي.

مسلم: کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار، باب: فضل الدعاء للمسلمين بظهر الغيب(۲۷۳۲)
ابو داود: کتاب الصلاة، باب تفريع أبواب الوتر، باب الدعا بظهر الغيب (۱۵۳۴)
ابن ماجة: کتاب: المناسک، باب: فضل الدعاء الحاج (۲۸۹۵)

۳: د جومات جوړول ډېر فضيلت لري. د عثمان بن عفان رضی الله عنه نه روايت دی چې وايي: ما د رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام نه واورېدل چې هغه وفرمايل:

**(مَنْ بَنَى مَسْجِدًا بَنَى اللَّهُ لَهُ مِثْلَهُ فِي الْجَنَّةِ ) .**

چا چې مسجد جوړ کړ الله عز وجل به ورته په جنت دهغه په رنگ کور جوړ کړي.

بخاري: کتاب الصلاة، باب: من بني مسجدا (۴۵۰)
مسلم: کتاب: المساجد و مواضع الصلاة، باب: فضل بناء المساجد والحث عليها (۵۳۳)

۴: هغه څه چې الله عزوجل نازل کړي په هغې حکم کول واجب دي دا کار د انسان ملک ساتي او عزت زياتوی.

۵: څوک چې په هغو جوماتونو کې لمونځ کوي، چې هغه خلکو په خپلو پیسو جوړ کړی وی، نو د جوړونکي په حسناتو کې زیاتوالی راځي. رسول الله علیه الصلاة والسلام فرمایلی:

**(مَنْ سَنَّ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةً حَسَنَةً فَعُمِلَ بِهَا بَعْدَهُ كُتِبَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ مَنْ عَمِلَ بِهَا ،وَ لَا يَنْقُصُ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْءٌ ) ،**

چا چې په اسلام کې ښه خبر (یا ښه کار) وکړه هغه پرې عمل وکړ او نورو هم پرې عمل وکړ، نو هغه ته د هغه د عمل کولو او د نورو په هغه د عمل کولو دواړه ثوابه دی او د هغوی په اجرونو کې کموالی نه راځي.

مسلم: کتاب الزکاة، باب: الحث علی الصدقة ولو بشق التمرة او کلمة طیبة (۱۰۱۷)

## ۲۴ : د الله عزوجل په حکم د حیواناتو خبری کول .

**عن أَبي هريرةَ رَضي اللّهُ عنهُ قالَ : سَمعْتُ رسُولَ الله صلى الله عليه وسلم يقول : بينَما راعٍ في غَنَمه عدا عَلَيه الذِّئْب فأَخَذَ منْهَا شَاةً فَطَلَبه الرَّاعي ،فَالْتَفت إِلَيه الذِّئْب ،فَقَالَ : من لَها يوم السَّبعِ يومَ لَيس لَها رَاعٍ غَيْري ؟، وبَينما رجل يسوقُ بقَرةً قَدْ حمل عَلَيها فَالْتَفتت إِلَيه فكَلَّمتْهُ ،فَقَالَتْ : إِنِّي لَم أُخْلَق لهَذَا ولَكنِّي خُلقْتُ للْحَرْث " , قَالَ النَّاس : سبحانَ الله ،فقَالَ النَّبيُّ صلى الله عَلَيه وسلَّم : " فَإِنِّي أُومن بذَلك وَ أَبوبكْرٍ , وَ عمر رضي اللّهُ عنهما .**

د ابو هریرةَ رضیَ اللهَ عَنه نه روایت دی، چې ما دَ رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام نه واورېدل چې فرمایل یې:

یو شپون چې هغه خپله رمه څروله لېوه د هغه په رمه حمله وکړه او یوه میږه ( ګډه) یې ترینه وتښتوتله، شپون د میږې د خلاصولو په هڅه کې د لېوه پسې روان شو. لیوه ورته را وکتل او ورته یې وویل: د هغه ویرې په ورځ به دا میږه څوک وساتي په کومه ورځ چې به زما نه بغیر بل شپونکی نه وي. یو کس په غوا سور روان و. غویي د هغه خوا ته وکتل او ورته یې وویل: زه د دې لپاره نه یم پیدا شوی بلکه د پټیو د کرنې لپاره پیدا شوی یم. خلکو وویل: سبحان الله. رسول الله علیه الصلاة والسلام وفرمایل: زه ابوبکر او عمر په دې ایمان لرو.

**دحدیث تخزیج :**

بخاری و هذا لفظه: کتاب، فضائل اصحاب النبي علیه السلام، باب: باب قول النبي صلی الله علیه وسلم لوکنتم تخذا خلیلا (۳۶۶۳) او په کتاب المزارعة، باب: استعمال البقر للحراثة (۲۳۲۴)

مسلم: كتاب، فضائل الصحابة رضى الله عنهم، باب من فضائل أبي بكر الصديق رضى الله عنه حديث (۲۳۸۸)
ترمذي: كتاب الدعوات، أبواب المناقب عن رسول الله، باب قوله فان لم تجدينى فأتي أبا بكر، حديث (۳۶۷۷) او (۳۶۹۵ )

**د حديث فائدې :**

۱: حیوانات پوهیږي لکه څنګه چې په پورتنی کیسه کې لیوه وویل او یا هم غوا وویل چې زه ددې لپاره نه یم پیدا شوی.

۲: د لیوه خبرې نه دا معلومیږی، چې دنیا په خپل حالت نه پاتې کیږی.

۳: د غوایي د خبرو نه معلومیږی، چې غوایی د بار لپاره نه ده پیدا شوی.

۴: رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام په حیواناتو د رحم امر کړی. د شداد بم أوس رضی الله عنه نه روایت دی وایي: ما د رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام نه واوریدل چې ویې فرمایل:

**(إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ ، فَإِذَا قَتَلْتُمْ ، فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ ، وَإِذَا ذَبَحْتُمْ ، فَأَحْسِنُوا الذِّبْحَةَ ، و لِيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ ، وَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ ) .**

الله عزوجل د هر شي سره احسان واجب کړی دی. کله چې تاسو قتل کوی نو په ښه توګه قتل وکړی او کله چې (یو څه) حلالوئ، نو په په ښه توګه یې حلال کړئ او (حلالونکي ته پکار دي چی) خپله چاړه ښه تیره کړي او ځناور ته راحت (ارام) و رسوي.

ابی داود: كتاب الضحايا، باب: فی النهی أن تصبر البهائم والرف بالذبيحة (۲۸۱۴)
ترمذي: كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عيه وسلم، باب: ما جاء فى النهي عن المثلة (۱۴۰۹)
نسايي: كتاب الضحايا، باب الأمر باحداد الشفرة (۴۴۱۰)
ابن ماجة: ابواب الذبائح، باب: اذا ذبحتم فأحسنوا الذبح (۳۱۷۰)

۵: رسول الله علیه افضل الصلام والسلام په حیواناتو د ظلمو کولو څخه منع کړی ده.

**۲۵ : د ریښتیني صدقې برکت .**

**عَن أَبي هريرةَ رَضي اللهُ عَنه ،عَن النَّبيِّ صَلى اللهُ عَلَيْه وسلم , قَالَ : " قَالَ رجل : لَأَتَصَدَّقَنَّ بصَدَقة ،فَخَرج بصَدَقَته فَوضعها في يد سَارق ، فَأَصبحوا يتحدَّثُونَ : تُصدِّقَ عَلى سَارق ،فقَالَ : اللهُمَّ لَكَ الْحمدَ ، لَأَتَصَدَّقَنَّ بصدقَة ،فَخَرجَ بصدقَته فوضعها في يد زَانية ،فأَصبحوا يتحَدَّثُونَ : تُصدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلى زَانية ،فَقَالَ : اللهُمَّ لَكَ الْحمد، عَلَى زَانية ،لأَتصَدَّقَنَّ بصَدقَة ،فَخرج بصدقته ،فَوضعها في يد غَنيٍّ ،فأَصبحوا يتحدَّثُونَ : تُصدِّقَ عَلى غَنيٍّ ،فقَالَ : اللهُمَّ لَكَ الْحمدُ عَلَى زَانية ، و عَلى غَنيٍّ ،وعلَى سارق ،فَأُتي فَقيلَ لَه : أَمَّا صدقَتك عَلَى سارق فَلعَلَّه أَنْ يستعفَّ عَنْ سرقَته و أَمَّا الزَّانيةُ فَلعلَّها أَنْ تَستعفَّ عَن زِنَاها ، و أَمَّا الْغَنيُّ فَلعَلَّه يعتبر فَينْفق ممَّا أَعطَاه اللهُ .**

د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام وفرمايل:
يوه سړي دا اراده وکړه چې نن شپه به زه صدقه ورکوم. هغه د خپلې صدقې د ور کولو په خاطر ووته. هغه(په ناپوهي کې) خپله صدقه يوه غل ته په لاس کې کېښوده. خلکو داسې خبرې کولې چې غل ته يې صدقه ورکړه. صدقه ورکوونکي وويل: ای زما ربه! يواځې ته د ثنا او صفت لايق يې. زه به (نن) بيا صدقه ورکوم. هغه د خپلې صدقې په خاطر ووته او خپله صدقه يې( په نا خبری کې) يوې بد کارې (زناکارې) ښځې ته ورکړه. خلکو داسې خبرې کولې چې زنا کارې ته يې صدقه ورکړه. صدقه کوونکي وويل: ای زما ربه! يواځې ته د ثنا او صفت لايق يې. زه به نن بيا صدقه ورکوم. هغه د خپلې صدقې د ورکولو په خاطر ووته او خپله صدقه يې (په نا پوهي کې) يو مالداره ته ورکړه. خلکو خبرې کولې چې نن يې صدقه يو مالداره ته ورکړه. صدقه کوونکي وويل: ای زما ربه! د ثنا او صفت لايق يواځې ته يې. ياالله ستا شکر دی چې زما صدقه مالدار، غله او زناکارې په لاس ورغله. هغه سړي ته يو کس (په خوب کې) راغی او ورته يې وويل: ستا صدقه قبوله شوه. تا چې هغه بد کارې ښځې ته کومه صدقه ورکړې وه کېدای شي هغې ستا په دغه صدقه د بد کاری څخه ځان ساتلی وي. تا چې غل ته کومه صدقه ورکړې وه کېدای شي د هغه له امله هغه غلا پريښې وي او تا چې مالداره ته کومه صدقه ورکړه کېدای شي هغه ووايي چې خلک صدقه ورکوي زه يې ولې ور نه کړم او هغه څه چې الله ورکړي په هغې کې صدقه ورکړي.

**دحديث تخريج :**

بخاري واللفظ له: کتاب الزکاة، باب اذا تصدق علی غنئ و هو لا يعلم. حديث (۱۴۲۱)
مسلم: کتاب الزکاة، باب ثبوت أجر المتصدق، وان وقت الصدقة فی يد فاسق ونحوه،حديث (۱۰۲۲)
نسايي: کتاب الزکاة، باب اذا أعطاها غنيا و هو لايشعر، حديث: (۲۶۲۴)

**د حديث فائدې:**

۱: په حديث کې د زناکارې او غل نوم نه دی ذکر شوی ځکه اسلام د پردې دين دی.
۲: مؤمن هر وخت د ښو کارونو کولو په لټه کې وي.
۳: عملونه د نيت پورې تړلی دی.
۴: که څه هم په دغه کېسه کې راغلي چې هغه سړي خپله صدقه، غل، زناکارې او مالدار ته ورکړه خو بيا يې هم د الله عزوجل حمد او ثنا ويله يعنې په هر حال بايد انسان د الله عزوجل حمد بيان کړي.
۵: الله عزوجل فرمايلی:
(وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ) ، د بقرې سورت ۲۱۶ آيت.
ژباړه: او ښايی چې تاسو يو شی بد وګڼی او هغه ستاسو لپاره ښه وي.

هغه سړي دا کار بد وګڼه چې غل، بد لمني او مالدار ته يې صدقه ورکړه، خو په خوب کې يې وليدل چې څوک ورته وايي، چې کېدای شي ستا صدقه چې دوی ته دې ورکړې ده زناکاره له زنا، غل له غلا او مالدار زکات ورکړی.

٦: کېدای شي يو مالدار بخيل او کبرجن هم و اوسی.

٧: د يو انسان کار په بل اثر کوي.

**٢٦ : د الله عزوجل اراده .**

**عَن أَبِي هُرَيرَةَ ،قَالَ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وَسَلَّم : " قَالَ سلَيمانُ : لَأَطُوفَنَّ اللَّيلَةَ عَلَى تسْعينَ امرأَةً كُلُّهنَّ تَأْتي بفَارس يُجَاهدُ في سبيل الله ،فَقَالَ لَه صَاحبُهُ : قُلْ : إنْ شَاء اللهُ،فَلَمْ يقُلْ : إنْ شَاء اللهُ، فَطَافَ عَلَيْهنَّ جميعًا،فَلَم يحملْ منْهنَّ إلا امرأَةٌ واَحدَةٌ ،جاءتْ بشقِّ رجلٍ ،وايم الَّذي نَفْس مُحَمَّد بيده ،لَوْ قَالَ : إنْ شَاء اللهُ لَجَاهدُو افي سَبيل اَلله فُرسانًا أَجمعونَ " .**

دابو هريره رَّضَىَ اَللهُ عنه نه روَايت دی، چې رسول الله صلَى الله وسلم وفرمايل: يوه ورځ سليمان عليه السلام وويل: نن شپه به زه خپلو ٩٠ کور والا (ښځې) سره کور والی کوم او هره يوه به آس ځغلونکی ماشوم راوړي چې (هغوی ټول به) د الله په لاره کې جهاد کوي. د سليمان عليه السلام ملګري هغه ته وويل: ان شاء الله و وايه، مګر د سليمان عليه السلام نه د ان شاءالله ويل د ياده ووتل. سليمان عليه السلام خپلو بيبيانو ته ورغي، مګر د هغه د يوې بيبي نه بغير نور د هيچا حمل و نه شو او د هغې يوې هم چې ماشوم وشو هغه هم ناقص وه. رسول الله عليه الصلام والسلام وفرمايل: زما دې په هغه ذات قسم وي، چې د محمد نفس د هغه په واګ کې دی که چېرته سليمان عليه السلام ان شاءالله ويلي و (د هغه د ټولو بيبيانو نه به ځامن پيدا شوی وو) هغوی ټولو به د الله په لار کې په آس سواره جهاد کړی وو.

**دحديث تخريج :**

بخاري و هذا لفظه: كتاب الأيمان والنذور، باب كيف كانت يمين النبى صلى الله عليه وسلم، حديث (۶۶۳۹)او په كتاب الجهاد، باب: من طلب الولد للجهاد (۲۸۱۹)بخاري په: كتاب أحاديث الأنبياء، باب: قول الله تعالى (و وهبنا لداود لسيمن، نعم العبد، انه أواب (۳۴۲۴)په كتاب النكاح ، باب: قول الرجل: لأطوفن الليلة على نسايي (۵۲۴۲)په كتاب: كفارات الأيمان، باب: الاستثناء في الأيمان (۶۷۲۰ ) او په كتاب التوحيد، باب: في المشيئة والارادة، حديث (۷۶۶۹)

مسلم: كتاب الايمان، باب الاستثناء في اليمين وغيرها، حديث (۱۶۵۴)

نسايي: كتاب الايمان والنذور، باب اذا حلف فقال له رجل ان شاءالله، هل له استثناء؟ حديث (۳۸۶۲)

**دحديث فائدې :**

۱: لوی او غټ همت او د اجر نيت د مسلمان له صفاتو څخه دی.
۲: ټول أنبياء بشر دی او هغوی لکه د نورو عامو انسانانو غونډې شيان ورڅخه هېرېږی لکه په دغه کيسه کې چې د سليمان عليه السلام نه د ان شاء الله ويل هېر شول.
۳: کله چې يو کس د کوم کار اراده وکړي د مثال په توګه ووايي، چې سبا دا کار کوم نو بهتره دا ده چې داسې ووايي: ان شاءالله سبا به دا کار وکړم. الله عزوجل فرمايلی:
**(وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا (23) إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ ۚ وَ اذْكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَ قُلْ عَسَىٰ أَن يَهْدِيَنِ رَبِّي لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا) . د کهف سورت ۲۳ او ۲۴ مبارک آيتونه .**
ژباړه: او مه وايه يو شي ته چې زه دغه کار سبا ته کوم، مگر (ورسره وايه ای محمده) چې د الله اراده وي او کله چې دی هېره شي، نو خپل رب يادوه او (ای محمده) دوی ته ووايه چې ښايي زما رب ماته سمه لار وښيي.

**۲۷ : عفريت او لمونځ .**

**عَن أَبي هريرَةَ ، عَن النَّبيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم قَالَ : إنَّ عفْريتاً من الْجنِّ تفَلَّتَ عَلَيَّ الْبَارحَةَ أَو قال كَلمةً نحوها - ليَقْطَعَ عَلَيَّ الصَّلَاةَ ، فَأَمْكَنَني اللهُ منْهُ ، فَأَرَدْتُ أَنْ أَربطَهُ إلَى سَارية من سواري الْمَسْجد حتَّى تُصْبحُوا وتنظُروا إلَيْه كُلُّكُمْ ،فذَكَرتُ قَولَ أخي سلَيمانَ : { ربِّ هبْ لي ملْكًا لَا ينبَغي لأَحد من بعْدي}، قَالَ روحٌ : فَردَّه خاسئاً .**
د ابو هريرةً رضی الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله عليه الصلاة والسلام وفرمايل:
تېره شپه يو سرکشه او چالاکه پېری ماته راغی (او يا يې همداسې کومه خبره وفرمايله) تر څو زما لمونځ خراب کړي. الله عزوجل زه په هغه کامياب کړم ما غوښتل چې هغه د جومات د ستنې (پايې) پورې وتړم تر څو چې تاسو سهار راشی، نو تاسو ټول يې ووينی خو د خپل ورور سليمان عليه السلام دا خبره را ياده شوه چې : (**ربِّ هب لي ملْكًا لَا ينْبَغي لأَحد من بعْدي** ).
ای ربه! ماته داسې ملک(پاچاهی) راکړه چې زما څخه وروسته د هيچا په نصيب نه شي.
د حديث راوي روح وايي: هغه (پيری) بيا الله عزوجل د ذلت او رسوايي سره وشاړه.

د حديث تخريج :
بخاري واللفظ له: كتاب الصلاة، باب الأسير أو الغريم يربط في المسجد، حديث (۴۶۱)بخاري په أبواب العمل فی الصلاة، باب: ما يجوز من العمل فی الصلاة، حديث (۱۲۱۰)په کتاب: بدء الخلق باب: صفة ابليس وجنوده کې په مختصره توګه روايت (۳۲۸۴ )په کتاب: أحاديث الأنبياء، باب: قول الله تعالى:(و وهبنا لداود سليمن، نعم العبد، انه أواب) (۳۴۲۳)او په کتاب التفسير (سورة ص) باب قوله: وهب لی ملكا لا ينبغي لأحد، حديث (۴۸۰۸)

مسلم: کتاب المساجد و مواضع الصلاة، باب جواز لعن الشیطان فی أثناء الصلاة، والتعوذ منه ... حدیث (۵۴۱)

**د حدیث فائدې:**

۱: کله چې یو پیری ډېر قوی او ضرر رسونکی وي هغه ته بیا عفریت وایي. الله عزوجل د نمل مبارک سورت په ۳۹ آیت کې فرمایلی:

(قَالَ عِفْرِيتٌ مِّنَ الْجِنِّ أَنَا آتِيكَ بِهِ قَبْلَ أَن تَقُومَ مِن مَّقَامِكَ ۖ وَإِنِّي عَلَيْهِ لَقَوِيٌّ أَمِينٌ ) .

ژباړه: له پیریانو څخه یو زورور او قوي پیری وویل: زه به تاته دا تخت د دې نه مخکې رواړم چې ته له خپله ځایه پاڅېږې او زه پر دغه تخت راوړلو کې قوي امانت ګریم.

۲: مسجد کې د بندي تړل جایز دي لکه څنګه چې په پورتني حدیث کې راغلي.

۳: انسان پیریان لیدلی شي که هغه په خپل شکل وي او که شکل یې بدل کړی وي لکه د ابوهریرة رضی الله عنه حدیث او یا هم لکه دار الندوة کې چې د سراقة بن مالک په صورت راغلی و او یا هم لکه په پورتني حدیث کې چې رسول الله علیه الصلاة والسلام فرمایلی: چې ما هغه د ستنې پورې تاړه.

۴: شیطان هر وخت د دې په لټه کې وي، چې انسان په هر هغه څه کې چې هغه د خپل الله سره په رابطه کې وي خلل پیدا کړي.

۵: لمونځ تر ټولو لوی او ستر عبادت دی، ځکه خو عفریت رسول الله علیه الصلاة والسلام ته یواځې په لمانځه کې راغلی وه.

۶: په لمانځه کې خشوع ډېر مهم رکن دی ځکه دا د بنده او د الله عزوجل ترمنځ رابطه ده.

۷: رښتوني ورورولي د اسلام وروروليي ده لکه په پورتني کیسه چې رسول الله علیه افضل الصلاة والسلام فرمایلي: ما د خپل ورور سلیمان علیه السلام خبره را یاده شوه.

۸: د دې نه ښکاري چې رسول الله علیه افضل الصلام والسلام د ادب یوه نمونه و ځکه خو یې عفریت ونه تاړه، سلیمان علیه السلام داسی دعا کړې وه چې: یا ربه ماته داسې بادشاهي راکړې چې زما څخه وروسته چاته په نصیب نه شي.

۹: کله چې بنده د خپل الله سره تعلق څومره زیاتیږی او ایمان یې پخېږی دومره د شیطان چل او فریب کمېږی. الله عزوجل فرمایلی:

(إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا ) سورة النساء ۷٦ مبارک آیت.

**۲۸ : شیطانان د میړه او ښځې ترمنځ چدا والی راولی .**

**عَن جَابر ، قَالَ : قَالَ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم : " إنَّ إبْليسَ يضَع عَرشَه عَلى الْماء ،ثُمَّ يبعثُ سَرَاياهَ ، فَأَدْنَاهم منْهُ منْزلَةً أَعْظَمهم فتْنَةً ،يجيءُ أَحدُهم ،فَيقُولُ : فَعلْتَ كَذَا و كَذَا ، فَيقُولُ : ما صنعْتَ شيْئا،قَالَ : ثُمَّ يجيءُ أَحَدهم ،فَيقُولُ : ماتَركْتُه حتَّى فَرَّقْتَ بينه وبين امْرأَته ،قَالَ : فَيُدْنيه منْهُ، ويقُولُ : نعْم أَنْتَ " ، قَالَ الْأَعْمَشُ : أُرَاهُ قَالَ : فَيلْتزمُهُ .**

د جابر رضی الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:
ابلیس علیه اللعنة خپل عرش په اوبو ږدي او بیا خپل فوځونه (ټولګي) استوي په دوی کې چې څوک شیطان ته نزدې وې هغه تر ټولو د لویې او غټې فتنې اچونکي وي. په دوی کې یو راشی او ابلیس ته ووایې: چې ما داسې او داسې وکړل. ابلیس ورته وایي: تا څه هم نه دي کړي. بیا بل راشي او ورته ووایې: ما فلانی سړی تر دې پرې نه ښوده تر څو چې مې د هغه او د هغه د مېرمنې ترمنځ جداوالی را نه وست. ابلیس هغه ځان ته نزدې کړي او ورته وایي: ته په ټولو کې ښه یې. اعمش وایي: هغه په غیږکې نیسي.

**دحدیث تخریج :**

مسلم: کتاب صفات المنافقین واحکامهم باب: تحریش الشیطان، وبعثه سرایاه لفتنة الناس...حدیث (۲۸۱۳)

**د حدیث فائدې:**

۱: ابلیس یعنې د الله د رحمت نه نا امیده شوی.
۲: ابلیس علیه اللعنة په بحر کې اوسیږی لکه څنګه چې په پورتني حدیث کې راغلي.
۳: ابلیس علیه اللعنة خپل فوځونه لري، چې دی ملعون ورته أمر کوي او هغوی ملعونین یې امر په ځای کوي.
۴: کله چې یو مشر د خپل ځان سره ظالم او بد عمله خلک وساتي، نو بیا فساد او ظلم په ځمکه خپل عوج ته رسیږی.
۵ : ټیټ خلک تل د دې په لټه کې وي، چې څنګه لوړ پوړو ته ځانونه نزدې کړي کړي هغوی د نزدې والي او د شاباشي لپاره هر رقم کارونو ته غاړه ږدي تر څو خپل مشر خوشحاله کړي لکه په پورتني حدیث کې چې واړه شیطانان ابلیس علیه اللعنة ته وایي ما دا او دا وکړل.
٦: داعیانو او علماؤ ته پکار دي، چې په خپل دعوت او علم خپرولو کې ډېر زیات کوښښ وکړي. ځکه کله چې ابلیس علیه اللعنة په وړو، وړو کارونو نه خوشحاله کیږی، نو داعیان او علماؤ ته پکار دي چې دعوت او د علم په خپرولو کې یوه لحظه هم سستي ونه کړي.

۷: ابلیس تر هر څه ډېر د یوه مسلماني مېرمن او د هغه د مېړه ترمنځ په جداوالي ډېر خوشحاله کېږي ځکه بیا انسان زنا ډېر زر کوي او په ټولنه کې فساد او خرابوالی رامنځ ته کېږي.
۸: کله چې کافر او مفسد په خپل دعوت کې مصروفه وي او هغوی په هرو سختیو صبر کوي، نو داعیانو او علماؤ ته پکار دي چې هغوی خو لا ډېر د صبر او زغم نه کار واخلي.

**۲۹ :ایوب علیه السلام او برکت .**

**عَن أَبِي هريرَةَ رَضي اللهُ عَنْهُ ،عَن النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ،قَالَ : " بينَما أَيُّوب يَغْتَسِلُ عُرياناً خَرَّ عَلَيْه جراد منْ ذَهَب ،فَجعل أَيُّوبَ يَحْثي فِي ثَوْبه، فَنَادَاه رَبُّهَ : يا أَيُّوب ! أَلَم أَكُن أَغْنَيتك عَمَّا تَرى ؟، قَالَ : بَلَى وعزَّتك ،ولَكنْ لَاغنَى بِي عن بركَتك .**

د ابی هریرة رضی الله عَنهَ نه راویَت دیَ، چې رسول اللهَ علیه الصلاة والسلام وفرمایل:
ایوب علیه السلام (یو ځل) لوڅ لمبلې، چې د سرو زرو ملخان پرې را ووربدل. ایوب علیه السلام (ملخان) په خپلو کالیو کې ټولول، الله عزوجل ورته وفرمایل: ای ایوبه! ما د دغه شیانو نه چې ته یېویني نه وي بې نیازه کړي؟ ایوب علیه السلام عرض وکړ :چې هو زما ربه! زما دې ستا په عزت قسم وي، مګر ستا د برکت نه زه بې نیازه نه یم.

بخاري وهذا لفظه: كتاب الغسل، باب من اغتسل عريانا وحده في الخلوة، حديث (۲۷۸)او په کتاب: أحاديث الأنبياء، باب، حديث(۳۴۰۴)او په کتاب التفسير ( سورة الأحزاب) باب: لا تكونوا كالذين اذوا موسى، حديث (۴۷۹۹)
نسايي: كتاب الغسل والتيمم، باب: الاستتار عند الغسل، حديث (۴۰۹)

**د حدیث فائدې :**

۱: کله چې انسان یواځې او ځان ته وي او بل څوک یې نه ویني، نو دا مباح ته چې لغړ ولامبي، ځکه الله عزوجل أیوب علیه السلام ته د ملخانو د ټولولو وویل نه دا چې ته ولې لوڅ لامبې.
۲: الله عزوجل د نبییانو سره مستقیماً یا د وحیو په ذریعه خبرې کړي.
۳: کله چې یو انسان مالداره وي، نو د حلال مال جمع کول جایز دي، خو چې د دغه مال له امله په فتنه کې واقع نشي.

**۳۰ : د الله عزوجل رحمت .**

**أن أبا هريرة رضي ال عنه ، قَالَ : سَمِعْتُ رسولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وسَلَّم ،يقُولُ : " قَرصتْ نَمَلَةٌ نَبِيًّا من الْأَنْبِيَاء ،فَأَمر بقَرْيَةِ النَّملِ فَأُحْرِقَ ،فَأَوحى اللهُ إِلَيْه ،أَنْ قَرصَتْك نملَةٌ أَحرقْت أُمَّةً من الْأُمَمِ تُسَبِّح ،**

د ابو هرير رضى الله عنه نه روايت دى، چې ما د رسول الله عليه الصلاة والسلام څخه واورېدل چې ويې فرمايل: په نبييانو کې يو نبي (عزير يا موسى عليهما السلام) ميږي( ميږه تون) وچيچه، نو دهغه په امر د ميږيو ټول کلي (کورونه، غارونه) په اور وسوځول شول. الله عزوجل ورته وحيه وکړه، چې ته يو ميږه تون وچيچلې او داسې يو امت دى ټول وسوځوه چې د الله عزوجل تسبيح يې بيانوله.

### دحديث تخريج:

بخاري و هذا لفظه: كتاب كتاب الجهادوالسير،باب إذاحرقالمشركالمسلمهليحرق ؟ حديث : ( ٣٠١٩).
او په كتاب: بدء الخلق، باب: اذا وقع الذباب فى الشراب أحدكم فليغمسه فان في أحد جناحيه داء وفي الآخرة شفء، وخمس من الدواب قواسق يقتلن في الحرم، حديث (٣٣١٩)
مسلم: كتاب السلام، باب النهي عن قتل النمل، حديث (٢٢٤١)
أبي داود: كتاب، أبواب النوم، باب في قتل الذر، حديث (٥٢٦٦)
نسايي: كتاب الصيد والذبائح، باب (معجم) قتل النمل، حديث (٤٣٦٣)
ابن ماجة: ابواب الصيد، باب ما ينهي عن قتله، حديث (٣٢٢٥ )

### د حديث فائدې :

١: ټول انبياء بشر دى هغوى مريضان او مړه کېږى.

٢: د غصې نه ځان ساتنه پکار ده. په پورتني حديث کې يو نبي د قهر له امله د ميږه تنو( ميږيو) کلى وسوځاوه.

٣: الله عزوجل په هر څه رحيم او مهربان دى.

۴: په کون کې هر شى د الله تسبيح وايي البته مونږ پرې نه پوهيږو.

۵: څوک چې د الله عزوجل ذکر کوي هغه د الله په نزد ژوندى دى او څوک چې د ذکر کولو نه محرومه وي هغه د مړو په مثال دى. رسول الله عليه افضل الصلاة والسلام فرمايلي دي:

**(مثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي لاَ يَذْكُرُ رَبَّهُ ،مَثَلُ الحَيِّ وَ المَيِّتِ)** .

هغه کس چې د الله عزوجل ذکر او هغه چې هغه د الله ذکر نه کوي د ژوندي او مړي په مثال دى.

بخاري: كتاب الدعوات، باب فضل ذكر الله عزوجل (۴۴٠٧)
مسلم: كتاب صلاة المسافرين و قصرها، باب استحباب صلاة النافلة فى بيته وجوازها (٧٧٩)